کبیر ستوری

Kabir Stori




# ژبساپوهنه

# Zabsapohana
# Language Psychology




خپرونکی: د پښتونخوا د پوهنې دېره، پېښور

De Pakhtoonkhwa da Pohane Dera

# د کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | : ژبساپوهنه |
| ليکوال | : ډاکټر کبير ستوری |
| خپرونکی | : د پښتونخوا دِ پوهنې ديره، پېښور، پښتونخوا |
| مهتمم | : ډاکټر محمد فريد بزګر |
| کمپوز | : نعمت الله رسولي او ملکزی د کور د خپرونو څانګه |
| د پشتۍ ډيزاين | : قدرت الله او م. فريد بزګر د کور د خپرونو څانګه |
| شمير | : ۲۰۰۰ ټوکه |
| د چاپ نېټه | : نومبر ۲۰۰۰ |
| ډيزاين او چاپ | : د ختيځ د بيا رغونې اداره (کور)، د خپرونو څانګه خپرنۍ لړۍ - ۲۴ |

پته: کور، G.P.O. Box # 607
Peshawar, Pakistan
E-mail: kor_bazger@hotmail.com

د تر لاسه کېدو پته:
سباوون ثقافتي مرکز، انقلابي مارکيټ، ارباب روډ، تهکال بالا، پېښور

# سرلیکونه

سرلیك..................................مخ

# ټرون

## د رحمت شاه سائل په نوم چې د پښتني ټولنې غټه معنوي پانګه ده او پښتو ژبې او ادب ته يې ستر خدمتونه کړي دي.

*ډاکټر کبیر ستوری*


Dr. Kabir Stori
Richard Str. 5
50389 Wessling
Germany
Tel. 02236/83463
Fax: 02236/841930



د دې کتاب لیکوال ډاکټر کبیر ستوري او ښاغلی رحمت شاه سائل
چې دا کتاب ورته ډالۍ شوی دی.

# سریزه

مخکې له دې چې د کتاب اصل موضوع ته راشو، د ژبساپوهنې د لیکونکي لنډه پېژندګلوي به په دې غوره وي چې لوستونکي پوه شي چې په پښتو ژبه کې د داسې یو ډېر اهم کتاب لیکونکی څوك دی او د دې خپرنې مقصد یې څه دی.

ډاکټر کبیر ستوری د پېژندګلوۍ محتاج نه دی، نژدې دوستان او ملګري یې د پښتنې خوی بوی څخه پېژني، لیکوالان او د قلم خاوندان یې په سوچه پښتو ژبه د خپرېدونکو کتابونو، مجلو، ورځپاڼو او نورو خپرندویه لیکنو څخه پېژندلی شي، د پښتنې سیاست په ډګر کې هم دغه ستوری په ټوله پښتونخوا کې ځلېږي. په کونړ کې زېږېدلی، د کابل په رحمان بابا لیسه کې یې زده کړه کړې او لوړ تحصیلات یې په جرمني کې بشپړ کړي، د باچا خان د فلسفې او سیاسي غورځنګ لاندې یې خپل شعور ته وده (تکامل) ورکړې، د خپل وطن او ولس سره بې کچه

مینه لري او په جرمني کې د څه نا څه دریو لسیزو راهیسې د پښتو او پښتونولۍ د پور خلاصولو په هلوځلو بوخت دی.

نو په دې نښتون کې د نورو ډېرو دندو تر څنګ یې یوه ذمه داري دا هم په غاړه اخستې چې په پښتو به خپل علمي او ادبي اثار لیکي، او نور هم دې ته هڅوي چې په پښتو ژبه لیکل وکړي تر څو د پښتو ژبې پانګه پیاوړې او درنه شي چې په دغه سلسله کې یې دا هم یو ډېر اهم کتاب دی.

د ساپوهنې او ژبساپوهنې په رڼا کې ژبه څه ته وایي؟ او د دې اهمیت څه دی؟ هسې خو دا ساده غوندې پوښتنې دي، خو د دې شاته د انساني ټولنې د پرمختګ غونډ تاریخ پروت دی چې د نورو عالمانو غوندې ډاکټر کبیر ستوری هم په دې موضوع باندې ډېرې څېړنې کړې دي چې یوه برخه یې دا دې ستاسو لاس کې ده. ډاکټر کبیر ستوری د انساني ټولنې پیل او په هغه کې د ژبې وده په ګوته کوي او بیا د پښتو ژبې ارتقا ته یوازې د لویدیز (West) د نامتو پوهانو

د کتابونو په رڼا کې څېړي بلکې د پښتنو تاریخ پوهانو او ټولنې ژوندي مثالونه هم راوړي.
په کتاب کې د ژبې بېل بېل ډولونه او د هغې رواني څېړنه (Psychological analysis) ډېر په زړه پورې دي، لکه: د لیك ژبه، ستر او وړوکی لیك، نرم او ټینګ لیك، کوږ او نېغ لیك، د سور او تال موسیقي ژبه، معیاري او پوهنیزه ژبه او همدغه شان ادبي ژبه.
د ادبي ژبې په برخه کې لږ ډېر تفصیل د ستوري د ادب سره نژدیوالی او ریښتیني اندېوالي ښيي.
د ژبې د پوهې په برخه کې دا کتاب ځینې نورې نوې څېړنې تر بحث لاندې راولي چې تر اوسه یې یوازې لویدیز کې کار شوې دی، خو داسې ښکاري چې ډاکټر کبیر ستوری په لومړي ځل په پښتو کې راوستلي دي، لکه: د ژبې د توان او ودې پیمانې، ژبه او ژبنیز استعداد، او د دې د تفصیل ورکولو نه پس په عملي توګه هم یو (Memory Test) یادښتی تله ورکړې شوې ده چې د کتاب لوستونکي خپل یادښت پرې ازمویلی شي، خو اوس په دې کتاب کې

د دغه پاڼو پـه لیدلـو زمـا پـه جرمني کـې د سبق هغـه
وختونـه رایـاد شـول کلـه چې کبیر خـان پـه دغـه ډول
څېړنـو بوخت و. او هـر څوك چـې بـه يـې ګېر كـړ، د
یـادښتی تلـې (Memory Test) کتـاب بـه يـې ورتـه
ورکړ او اخر به ورڅخه مونږ ملګري دومره تنګ شول
چې د دغه ستورو د ښتهونو څخه علي خان مسعود د
كبيرخان ستوري د كور نـه وتښتـېد او مونـږ هـم ورتـه
سکوټ انکار شوو، لوستونکي دې شكر كوي چـې د
هغه د زحمت او زيار د غونډې څېړنې نه يې فقط څو
پاڼې راخيستې دي البته دغه ښتهونه پـه هـر لحـاظ د
داسې څېړنو لپاره ډېر ضروري دي.
لنډه دا چې ډاكټر كبير ستوری د انســاني ټولنـې د
پرمختګ په رڼا کې د ژبی رول او هغه هم د ټولنـیزې
سـاپوهنې (Social Psychology) غونـدې پـېچلـې
موضوع لاندې دومـره پـه آسانه ژبـه ليكي چـې دا نـه
یوازې د ساپوهنې مسلکي خلکو لپاره ډېر مـهم دي،
بلكې د علم سره مینه وال تري نه هم پوره پند او پوهه
حاصلولی شي. كبير ستوری تش په نظريـو عقيـده نـه

لري، يو عملي انسان دی او همدغه شان نه يوازې د نورو پوهانو تجربو او کتابونو باندې تکيه کوي، بلکې خپله کورنۍ يې هم تر څېړنې لاندې نيولې ده، چې په دې کتاب کې يې خپله مثال راوړی، چې هغه د ده لمسيان دي او د هغوی د زېږيدنې نه تر خبرو کولو پورې دومره يې په بشپړه توګه تر نظر لاندې ساتلي دي او د عملي مثال په توګه يې وړاندې کوي چې څنګه يو ماشوم د ژوندانه په بېلابېلو پړاونو کې ژبه زده کوي.

د کتاب يوه برخه د پښتو ليك دود ته ورکړل شوی ده او ليکونکی ډېر په ډاډ سره وايې چې پښتو ژبې توان (ظرفيت) د انګرېزي او جرمني ژبو نه زيات دی يعنې د ودې ډېر قابليت لري خو ولې په دې برخه کې پښتو ژبې ته کار نه دی شوی. په بل ځای کې ليکي چې پښتو يوه ډېره توان منه ژبه ده چې ډډ يې غټ دی او ډېر څه په کې ځائيږي، په دغه لړ کې د پښتو سوچه ژبه کولو لپاره هم لارښونه شوې ده، د پښتو او پښتونولۍ په نښتون کې که يو خوا کره څېړنې شوي

نو بل اړخ ته د پښتونولۍ ستر (institution) جرګه باندې د لوېديز پوهانو له پلوه ژوره کتنه تر بحث لا ندې راغلې ده چې په نتيجه کې پښتونولي د جرګو يو ولسي سيستم (نظام) بلل کېږي کوم چې ډيموکراتيک (جمهوري) خوی لري او اوس هم د پښتنو په ټولنه کې ژورې جرړې لري خو مهمه دا ده چې د جرګې د اغېزو خبرې په داسې وخت کې کېږي چې د افغانستان د اوسنۍ ربړې د سوله ايزه حل لټولو لاره په کې موندلې کېدی شي. که څه هم کله کله کبير ستوری ډېر احساساتي (جذباتي) شوی دی او ليکي چې پښتانه او پښتونولي کلك تړون لري، خپلې د ژوند چارې د جرګو د لارې سموي، پښتونولي ځان ژغورونکی خوی لري او بهر نه په ځان کې ګوتې وهنه نه مني، د دې خبرې علت د پښتونولۍ په بشپړوالي (مکمل توب) کې پروت دی، چې د پښتنو د ژوند ټولې ربړې او چارې په خپله سمبالولې شي او د بهر مرستې ته اړتيا نه لري. نو په دی هکله د ډاکټر صيب دغه نظر يې باندې پوره

بحث کېدلی شي، چې ایا اوس وخت کې هم دا عملي کیدلی شي او ایا پښتانه هم هغه شان دي لکه څنګه یې چې ستوری صیب ویني؟
په کتاب کې د پښتنو نسل او نسب ته هم ډېر ځای ورکړی شوی دی او زه پخپله د ډاکټرکبیر خان ستوري دغه خبرې سره پوره اتفاق لرم چې د پښتنو اکثره پوهانو او څېړونکو خپله هډو ځان نه دی کړولی چې خپل ځان اوپېژني او د بهرنو متضادې نظریې بیابیا راخیستی دي، خو د ساینس او یویشتمې پېړۍ، نوو پوهنو په رڼا کې خوبه دا څه دومره ګرانه هم نه وي چې موږ دا معلومه کړی شو چې موږ څوك یو؟ خو په ډېرو نظریو کې یوه دا چې پښتانه بني اسرائیل دي، داسې ښکاري چې ډېر ژر به دا خبره رڼا ته راشي، ځکه چې د ځینې معلوماتو سره سم اسرائیلي څېړونکي ادارې په دې بوختې دي چې خپله یوه ورکه قبیله راپېدا کړي او په دی لړ کې دا ویل کېږي چې هغه ورکه قبیله پښتانه دي، په دې کې څومره حقیقت دی او دا به څنګه په ثبوت

رسېږي؟ نو نه خو تر اوسه موږ په دغه شان ځيزونو ځان خوږلی دی او نه په نژدې راتلونکی کې د دې څه نښې نښانې ښکاري، خو اسرائيليان به يې هرومرو يو پلو ته کړي. په دې کتاب کې د ژبه او قام يا اولس تر عنوان لاندې هم ډېر څه ليکل شوي دي او څېړونکې دغه نتيجې ته رسېږي چې پښتانه خپل جغرافيايي وحدت (وطن، ټاټوبی) ته پښتونخوا او خپل ځان ته پښتون ويلی دی که څه هم پښتانه په دوو هيوادونو کې اوسېږي خو د دوی ترمنځه قامي اړيکې شليدلي نه دي. ډاکټر ستوری د پښتنو د قامي وحدت د بيا بشپړتيا او راژوندي کيدلو نظريه د باچا خان تر مشرۍ لاندې د خدايي خدمتګارانو د غورځنګ په انځور کې ويني او پيرنګی د ښکاره دښمن په څېر د يادولو تر څنګ د افغانستان د پخواني پاچا ظاهرشاه څلوېښت کلنه دوره د پټ دښمن په توګه په ګوته کوي چې نسلي خو پښتون دی خو نه په پښتو ژبه پوهېږي او نه خو د پښتني کلتور

دی. دا د تــګ راتــګ آســانتیاوې او (Double
Nationality) شهریت ورکولو په څېر هم کېدې شي.
ډاکـټر ستوری پـه کتـاب کـې د پښتنـو مشـرانو د
یووالـي د لړ هلـې ځلـې ستایلي دي او محمد افضل
خـان لالا د روان کـال د نومـبر د میاشـتې د جـرګې
جوړول یې د پښتـون قـام د یووالـي یو مـهم ګام بللی
دی، او هـم یې د پښتـو د دوهـم عـالمي کـانفرنس د
جوړېدو تائید او مرسته کړې او په دې لـړ کې د دغـه
کانفرنس د چیرمین سـلیم راز، اورنـګ زیـب او نـورو
منتظمیونو د کوښښونو ستاینه کړیده.
په پای کـې دا هـم بـاید وویـل شـي چې پـه کتـاب کـې
ځینې نومونـه بـل ډول لیکـل او یـا املائـي غلطـي د
کتاب په بیره د لیکلو او ژر خلکوته د رسولو پـه وجـه
شوې کوم چې وروسته اصلاح کیدی شي، زه د ډاکټر
کبیر ستوري دی ستر خدمت ته په ډیره درنـه سترګه
ګورم چې د پښتو ژبې او قام لپاره یې د یو ډېر مـهم
کتاب پېروزینه کړی ده.

*ډاکټر شاه جهان*

*د پېښور یونیورسټۍ*

*د ژورنالېزم د ډیپارټمنټ مشر (چیرمین)*

په خوی بوی خبر دی او د خپلې ژبې او کلتور څخه
باالکل پردی شوی.
ستوری دا په څرګنده وایې چې د پاکستان د جوړېدو
نه پس سمه لاره خو دا وه چې د افغانستان او پاکستان
یو بل ته نژدې شوې وای خو ظاهر شاه دوه مخی
سیاست پېل کړ د یوې خوا یې د پښتنو ویش ومانه
او په پاکستان کې یې سفارت او قونسلګري جوړه
کړه او له بلې خوا یې ورسره دښمني را واخسته د
ظاهر شاه د حکومت له خوا په افغانستان کې د
پښتنو په ضد اقدامات هم په ګوته کېږي.
په کتاب کې دپښتنو د یو والي په هکله د پوره بحث
نه پس لیکونکی دغه خبره په ثبوت رسوي چې د
یووالي یا وحدت د فلسفي بنسټ په نژدیوالي ولاړ
دی او د (Globilisation) د نظریې په رڼا کې
پاکستان او افغانستان ته هم نژدی ګډ کار په کار دی
چې دا په اقتصادي، سیاسي، کلتوري ادبي او د
ژوند په نورو برخو کې منځ ته راتلای شي، خو تر
ټولو مهم په اقتصادي او تجارتي برخه کې ګډ کار

بحث کېدلی شي، چې ایا اوس وخت کې هم دا عملي کېدلی شي او ایا پښتانه هم هغه شان دي لکه څنګه یې چې ستوری صیب ویني؟
په کتاب کې د پښتنو نسل او نسب ته هم ډېر ځای ورکړی شوی دی او زه پخپله د ډاکټرکبیر خان ستوري دغه خبرې سره پوره اتفاق لرم چې د پښتنو اکثره پوهانو او څېړونکو خپله هڅه ځان نه دی کړولی چې خپل ځان اوپېژني او د بهرنو متضادې نظریې بیابیا راخیستی دي، خو د ساینس او یویشتمې پېړۍ، نوو پوهنو په رڼا کې خوبه دا څه دومره ګرانه هم نه وي چې موږ دا معلومه کړی شو چې موږ څوك یو؟ خو په ډېرو نظریو کې یوه دا چې پښتانه بني اسرائیل دي، داسې ښکاري چې ډېر ژر به دا خبره رڼا ته راشي، ځکه چې د ځینې معلوماتو سره سم اسرائیلي څېړونکې ادارې په دې بوختې دي چې خپله یوه ورکه قبیله راپېدا کړي او په دی لړ کې دا ویل کېږي چې هغه ورکه قبیله پښتانه دي، په دې کې څومره حقیقت دی او دا به څنګه په ثبوت

رسېږي؟ نو نه خو تر اوسه موږ په دغه شان ځېزونو ځان خوړلی دی او نه په نژدې راتلونکې کې د دې څه نښې نښانې ښکاري، خو اسرائیلیان به یې هرومرو یو پلو ته کړي. په دې کتاب کې د ژبه او قام یا اولس تر عنوان لاندې هم ډېر څه لیکل شوي دي او څېړونکې دغه نتیجې ته رسېږي چې پښتانه خپل جغرافیایې وحدت (وطن، ټاټوبی) ته پښتونخوا او خپل ځان ته پښتون ویلی دی که څه هم پښتانه په دوو هیوادونو کې اوسېږي خو د دوی ترمنځه قامي اړیکې شلیدلي نه دي. ډاکټر ستوری د پښتنو د قامي وحدت د بیا بشپړتیا او راژوندي کیدلو نظریه د باچا خان تر مشرۍ لاندې د خدایي خدمتګارانو د غورځنګ په انځور کې ویني او پیرنګی د ښکاره دښمن په څېر د یادولو تر څنګ د افغانستان د پخواني پاچا ظاهرشاه څلوېښت کلنه دوره د پټ دښمن په توګه په ګوته کوي چې نسلي خو پښتون دی خو نه په پښتو ژبه پوهېږي او نه خو د پښتني کلتور




# د ژبساپوهنې پېژندګلوي

د ساپوهنې په رڼا کې د ژبې څېړلو ته ژبساپوهنه وايي. ژبه د ساپوهنې يوه په زړه پورې موضوع ده او د ساپوهنې ډېرې څانګې د ژبې سره سر او کار لري او هره څانګه يې د ژبې سره سروکار لري او هره څانګه يې پخپلو لارو او ميتودونو (Methode) سره د ژبې مختلف اړخونه راسپړي. په دې کتاب کې ما د ټولنيزې ساپوهنې (Social psychology)، د سياسي ساپوهنې (Political Psychgology) د ادب د ساپوهنې (Literatur Psychology) د ښوونې او روزنې د ساپوهنې (Educational Psychology ) د ژورې يا راسپړيدلو د ساپوهنې (Psychoanalyse)، د کړنې د ساپوهنې (Applied Psychology) او حقوقي ساپوهنې (Forensic Psychology) د لارو (ميتودونو) په مرسته سره د پښتني ټولنې په نښتون کې د ژبې مختلف اړخونه راسپړلي او څېړلي دي. چېرته چې د بل چا نظريه راخستل شوې او يا حواله

پرې ورکړ شوې ده هغه په ليندیو کې د ليکوال د نوم او د کتاب د کال په ليکلو سره په نبنه شوې دي چې په اخستونځو کې بيا په بشپړه توګه په ګوته شوې دي

# انسان او ژبه

ژبـه پـه انسـاني ژونـد کـې مـهم رول لوبـوي ځينـې
څېړونکي د ژبـې پـه واسـطه انسـان د ژوی (حيـوان)
څخـه بېلـوي او ورتـه خـبرې کوونکـی ژوی (نـاطق
حېوان) وايـې. خو ځينـې نـور څېړونکـي بيـا پـه دې
عقيده دي چې ژوی هم يو ډول غږونه کولی شي او د
مخابرې يو سېستم لري چې سړی ورته ژبه يا د ژبې
يوه خاصه بڼه ويلی شي. خو واقعيت داسې دی چې د
ژبې مرکز په لوی کنټرول دنده په غاړه لري. د زېږېدو
په وخت کې د انسان د دماغ يـوازې څلورمـه برخـه
يعنې په سلو کې پنځه ويشت (۲۵%) وده کړې وي
او پنځه اويا (۷۵%) بيا وروسته وده کوي حال داچې
د ژوو دماغ په سلو کې د پنځه شپېتو (۶۵%) څخـه
زيات د زېږېدو په وخت کې بشپړ وي.
.(Merz, 1977)

لوی دماغ يا ماغزه په دوو برخو ويشل شوي دي چې
يوه يې کينه (کڅه) برخه ده او بله يې ښي برخه ده.



لوی دماغ (دماغ اکبر) (Rohracher, 1965)

د نوو څېړونو په نتیجه کې ثابته شوې ده چې د ښي لاس کسانو په سلو کې نوي (۹۰٪) او کیڼ لاس کسانو په سلو کې د شپېتو (۶۰٪) د ژبې مرکز د لوی دماغ په کیڼه (ګڅه، چپه) برخه کې دی. (Rohracher, 1965) په دې توګه سړی ویلی شي چې د اکثرو انسانانو د ژبې مرکز د لوی دماغ په کیڼه (ګڅه) برخه کې دی. د غړونو د ژبې دستګاه تالو دی

چې د غږونو پټهې لري او د ژبې د عضلې او شونډو په مرسته سره غږونه جوړوي. که د ژبې مرکز ته په لوی دماغ کې تاوان او ټکان ورسېږي نو بيا په ژبه کې هم خنډ پېښېږي او ژبه نښلي او يا د خبرو ځخه باالکل پرېوزي او سړی ګونګيږي که څه هم د تالو د غږ پټهې يې جوړې وي داسې هم کېدلی شي چې د ژبې مرکز په لوی دماغ کې جوړ وي خو د تالو د غږ پټهې خرابې شوې وي. په دې حالت کې هم په خبرو کې خنډ راځي. د انسانانو د تالو د غږونو په پټهيو کې د پرتو غږونو شمېر زيات او پراخه دی او مختلف ډول غږونه جوړولی شي خو د ژوو (حيواناتو) د تالو د غږونو شمېر ډېر کم دی او يوازې څو محدود غږونه کولی شي. د دې پورتنيو ټکو ځخه دا نتيجه په لاس راځي چې د انسان ژبه د غږونو د شمېر (د کميت) له پلوه بډای او بشپړه ده او د ژوو بيا نيمګړې او غريبه ده. په دومره اندازه سره ژبه د انسان او ژوي د توپير نښه ګڼل کيدلی شي چې انسان په ډېره پېمانه او ژوي په لږه پېمانه د خبرو کولو توان لري. د غږو ژبه

یا ګړیدنه د وزن له مخې په څلورو برخو کې جوړه شوې ده چې هره ټیټه برخه یې د خپلې جګې برخې څانګه ده.

ګړ: ګړ د ګړیدنې تر ټولو کوچنۍ برخه ده. پښتانه وایې چې پلانکی سړی ما ته ګړ هم نه شي کولی. یعنې هیڅ راته ویلی نه شي. رښتیا چې ګړ ځانته او ګوښې هیڅ دي او هیڅ مانا لرلی نه شي. خو ګړونه که په یوه ټاکلي ګړندیوالی (سراعت) یو د بل پسې راشي نو بیا غږ جوړوي. د ګړونو مجموعي ته چې د غږ په ټاکلي ګړندیوالي (سراعت) سره نه وي غور ریدنه وایې چې د ژبې مخکنۍ بڼه ده.

څپه (سیلاب): څپه کم ناکمه د دوه ګړونو څخه د ټاکلي ګړندیوالي په بنسټ جوړ شوی غږ دی لکه غر، کب، ور او داسې نور...

د څپې (سیلاب) څخه د شعر د وزن د اندازه کولو له پاره هم کار اخستل کېږي.

**نومونه یا ویي (لفظونه):** نومونه یا ویي د یو یا څو سیلابو څخه جوړ شوي غږونه دي.
جملې: جملې د څو نومونو یا لفظونو څخه جوړ شوي غږونه دي.
**د ژبې مینځ ته راتګ:** د ژبې مینځ ته راتګ د انګلیسي پوهان اویلنیګ (Aveling) او د الماني (جرمني) پوهان اخ (ACH) د نومونو یا ګړنې (اصطلاح) د جوړولو د تجربو په مرسته انځور کیدلی شي.
**د اویلنیګ او اخ تجربې:** د دې تجروبو موضوع هغه لړۍ ده په کومه کې چې یو بې مانا لفظ یوه مانا پیدا کړه یعنې د یو شي (څیز) نوم وګرزیده. اویلنیګ (Aveling) بې مانا ویي (لفظونه) د انځورونو او شیانو سره ونښلول او خپلو زده کوونکو ته یې څو ځله وښودل په پای کې دغه بې مانا ویي (لفظونه) د دغه شیانو او انځورونو (رسمونو) نومونه وګرزیدل او مانا

يې پيدا کړه. اخ (ACH) هم په همدې ډول د هندسوي جسمونو څخه کار واخيست.
ده د پيړو کاغذونو نه مربع، استوانه او مخروط جوړ کړ چې مختلف لوی والی او وزن يې درلود. يـوه غټه او درنه مربع، يوه غټه او سپکه مربع، يوه وړوکې او درنـه مربـع، يـوه وړوکې او سـپکه مربـع يعنــې څلـور ډوله مربع ګانې جوړې کړې.
همدغه شان څلور ډوله استوانی او مخروطونه يې هم جوړ کړل. بيا يې په ټولو غټو او درنو جسمونو غټو او سپکو جسمونو په کوچنيو او درنو جسمونو پـه کوچنيو او سپکو جسمونو د بی مانـا ويـي (لفظونـه) ونښلول. د تجربی کسان مجبور و چې هر يو جسـم پـه لاس کې جګ کړي او ور پوری نښلول شوی بی مانا (لفظ) ولولي. بيا د دغه جسمونو څخه نښلول شوي ويي (لفظونه) لرې کېدل او جسمونه بيا د ميز پـه سر ايـښودل کـېدل او د تجربـو د کســانو څخــه د دې غوښتنه کېدله چې يو ټاکلی جسـم و ګوري پـه دی لـړ کې څرګنده شوه چې دغه ويي (لفظونه) چې پخوا بې

مانا وی اوس مانا پیدا کړي ده او نومونه ګرزیدلي دي. (Rohracher, 1965)

د اخ (Ach) د دې تجربې څخه جوتېږي چې بې مانا ویي (لفظونه) یا غږونه مانا پیدا کوي کله چې د یوه شي پوري وتړل شي. د دې تجربو په پایله (نتیجه) کې سړی ویلی شي چې انسان د ژوو (حیواناتو) په پرتله د ډېرو او مختلفو غږونو توان لري خو دې غږونو په لومړي سر کې هیڅ مانا نه ورکوله خو کله چې د یو شي او یا د یو شي د ستاینو (صفتونو) پوری وتړل شو نو بیا یې مانا پیدا کړه. دا ترنه د رایادیدو د قانونو (Assoziationgesetze) په بنسټ کېږي چې د زده کړې د نظریې الفبا ګڼل کېږي دا قانونو نه لومړی ارستو (Aristoreles) راپه ګوته کړل چې وروسته یې بیا پراختیا ومونده چې مهم یې دا دي.

**د ځای او د وخت پیوستون قانون:** که چېرته سړی دوه یا زیات شیان په یوه وخت او یا یوه ځای

کې ووینې نو کله چې د دغه شیانو څخه یو رایاد شي نو بل یې هم رایادیږي.

**د ورته والي قانون:** که چېرته دوه شیان یو بل ته ورته وي د یوه رایادېدل د هر وخت د بل د رایادېدو سبب کېږي.

**د سمت او برخې قانون:** کله چې د یوه شي برخه رایاده شي نو ټول سمت یې رایادیږي.

**د تضاد قانون:** کله چې د تضاد یو اړخ رایاد شي نو د هر وخت یې بل اړخ هم رایادیږي. د غږ د ژبې په منځ ته راتګ کې د ځای او د وخت د پېوستون قانون کره رول لوبوي. یعنې د دې قانون په مرسته سره انسانانو بېل بېل بې مانا غږونه د بېلو بېلو شیانو سره ونښلول مانا یې پیدا کړه او نومونه وګرځېدل چې په نتیجه کې یې ژبه منځ ته راغله.

**د بېلو بېلو ژبو منځ ته راتګ:** د بېلو بېلو ژبو منځ ته راتګ د یوه شي (څېز) سره د ډېرو غږونو د یو ځای کولو او جوړه کولو څخه بل شی نه دی. یعنې د

همدغه يو شي (ځينې) سره بېل بېل غږونه ننبملول کېږي چې ټول يې يو شان ته مانا پېدا کوي. د مثال په توګه کله چې يو پښتون يو بوټې ليدلى دى نو د ونې غږ يې ورسره جوړه کړى دى. په همدغه شان جرمنيان بيا د همدغه بوټي سره د باوم (Baum) او انګرېزانو د ټري (Tree) غږ جوړه کړى دى. کله چې يو پښتون د ونې نوم واوري نو د ونې بوټى يې په ياد راځي. همدا خبره د جرمينانو د پاره چې د باوم (Baum) او د انګرېزانو د پاره چې د ټري (Tree) غږ واوري اعتبار لري. تر هغه وخته چې يو انګرېز په دې پوه نه شي چې پښتانه ټري (Tree) ته ونه وايې نو د ونې غږ د انګرېز د پاره بې مانا دى. همدغه د ټري (Tree) غږ د يوه پښتون د پاره بې مانا دى تر هغه پورې چې په دې پوه نه وي چې انګرېزان يې ونې ته وايې. لنډه داچې د يوه شي سره د بېلو بېلو سېمو د انسانانو له خوا د بېلوبېلو غږونو يو ځاى کول مونږ ته د بېلوبېلو ژبو منځ ته راتګ راپه ګوته کوي. دلته دا پوښتنه راپېدا کېږي چې په يوه ژبه کې هم ځينې

داسې شيان شته دی چې بېل بېل غږونه ور پورې تړلي وي يعنې مختلف نومونه لري خو يوه مانا ورکوي لکه ګټه، تېګه، ډبره او يا دروازه، ور، دړه، تمبه او داسې نور...

د دی پوښتنې په ځواب کې سړی ويلی شي چې په يوه شي پورې د بېلوبېلو غږونو تړل د چم ګاونډ او چاپېريال د مختلفوالي محصول دی. کله چې د يو شمېر وګړو چاپېريال د نورو څخه بېل وي او د بلې سېمې د وګړو سره يې تماس او اړيکی نه وي نو بيا دغلته ځانته ژبه منځ ته راځي او که د نورو سېمو د وګړو سره يې تماس او اړيکې وي نو بيا په دغه سېمه کې ځانته ژبه منځ ته نه راځي بلکې يوازې د ځينو شيانو د پاره خپل نومونه لري.

که د ټولنې لرغوني تاريخ ته ځېر شو نو وبه وينو چې په لومړي سر کې انسانان د وينې د خپلوۍ په بنياد ډلې په ګوښو ګوښو سېمو کې په داسې ځايونو او رغو کې اوسېدل چې اوبه به يې لرلې او په دې توګه يې خپلې بنستيي اړتياوې پوره کولې. خو کله

چې به په یوه سیمه کې د یوی ډلې شمېر زیات شو او
یا به د کوم بل علت له کبله د دوی بنسټي اړتیاوې په
بشپړه توګه پوره کیدلی نه شوې نو بیا به د شاوخوا
داسې شنو ځایونو ته ترې لاړل چې له یوې خوا به یې
د دغه ځای د وګړو سره شریك. تماس او راشه درشه
لرله او د بلې خوا به یې بنسټي اړتیاوې پوره وې. کله
نا کله چې به نژدی زرغونې سېمې نه وی نو لېرې
سېمو ته به لاړل او د پاتې برخې سره به یې تماس پرې
کړ شو. کله نا کله به د زرغونې سېمې د نیولو له پاره
د وینې یوې ډلې د وینې په بله ډله وګړو یر غلونه هم
کول. زموږ پښتنو د پاره دا لومړی خبره اعتبار لري
چې یو بل ته نژدې په مختلفو درو کې خپاره او
مېشته شوي دي چې یو پېدا ښنتي جغرافیایي
وحدت دی او یو له بل سره یې تماس او اړیکې ساتل
شوي دي. له دې کبله په بېلو بېلو درو کې بېلې بېلې
ژبې منځ ته نه دي راغلي خو د ځینو شیانو سره
مختلف غږونه ترل شوي دي او په دې توګه د یوه شي
له پاره دوه او یا زیات نومونه منځ ته راغلي دي خو د

تاریخ په اوږدو کې د پښتنو د بېلو بېلو ټبرونو په منځ کې د تګ راتګ د وسایلو د ښه کېدلو له کبله اړیکې او تماس لاپسې غښتلی شوی دی او په دې ترځ کې د یوه شي له پاره ډېر نومونه چې د پښتنو په بېلو بېلو درو کې پیدا شوي دي ټولو پښتنو زده کړي دي او یو د بل په خبرو ښه پوهېږي. ګټه، ډېره او تیره ټول پښتانه پېژني، چې د یو شي (ځیز) نوم دی. اوس به دی خبرې ته راشو چې د بېلو بېلو شیانو پورې چې یو د بل سره ورته والی او یا اړیکې ولري یو غږ هم تړل کېدلی شي چې په دې حالت کې ټولیز (عمومي) نوم جوړېږي. د بېلګې په توګه "ونه" چې د زیات شمېر بوټو نوم دی لکه خوبانۍ، بټڼګ، ناشپاتۍ، الوچه، توت، غوز او داسې نور...

لنډه داچې د ډېرو شیانو سره یو غږ او ډېر غږونه د یوه شي سره تړل کیدلی شي. خو څنګه چې د انسان ژبه د زده کړې په لړۍ (سلسله) ولاړه ده او زده کړه تل د اسان ځیز څخه د پیچلې خوا ته وي نو په داسې اټکل سرې کولی شي چې زیات شمېر یو ځپیز (یو

سیلابه) او یا دوه څپیزه نومونه په ژبه کې لومړی او
ډېر څپیزه نومونه او جملې وروسته منځ ته راغلي
دي. همدغسې تولیز (عمومي) نومونه لکه ژوی
(حیوان) لومړی او د بېلو بېلو ژوو نومونه لکه
پړانګ، ګیدړ، زمری، غوی او داسې نور... بیا
وروسته منځ ته راغلي بریښي.
دا هم پکار ده چې وویل شي چې انسان د ډېرو او
مختلفو غږونو توان لري نسبت هغې ته چې په یوه ژبه
کې پکارېږي. همدا سبب دی چې انسان د ډېرو ژبو د
زده کړې توان لري او د نورو ژبو غږونه هم و ښکدلی
او یا دولې شي. د ځینو لرغونو ژبو لکه اندوګرمان
(Indogerman) او سېمېتي (SEMit) ژبو پیدا ښنت
د میلاد څخه دری یا څلور زره کاله دمخه اټکل
کېږي. د هغه ژبو چې پخوا پرې یو ځل خبرې کېدلې
او د هغه ژبو چې اوس پرې هم خبرې کېږي شمېر د
پنځه ویشت زرو (۲۵۰۰۰) څخه تر پنځه دېرشت زره
(۳۵۰۰۰) پورې رسېږي (Mayer, 1980, BD7)

# بی غږه ژبه یا د جسماني اشارو او حرکتونو ژبه

داسي برېښي چې دا ژبه د انساني ژبې لومړنۍ او پخوانۍ څېره ده ځکه کله چې دوه کسان د یو بل په خبرو نه پوهېږي نو د جسماني اشارو څخه کار اخلي چې یو بل په خپل فکر، اراده او احساساتو پوه کړي. کیدای شي چې انسانانو ترټولو لومړی د دی ژبې څخه کار اخسته خو څنګه چې د جسماني اشارو او حرکتونو شمېر لکه د ژوو د غږونو په شان کم دی نو د ژبې د دې بنې ارزښت او اهمیت یې راټیټ کړی دی که څه هم نن ورځ په صنعتي هیوادونو کې د کڼو او ګونګیانو له پاره د جسماني اشاروو یوه اندازه بشپړه ژبه شته دی.

# د لیک ژبه

د لیك ژبــه د غــرېدو د ژبــې څخــه وروســته منــځ تــه راغلې ده. د لیك د ژبې تر ټولو پخوانی بڼه انځوري لیك دی چې د میلاد څخه لس زره کاله د مخه اټکل کېږي. په دې لیك کې د ټاکلي ویي (لغات) له پاره یو ټاکلی انــځور (Bild) و. بیــا وروســته انــځور د ویــي (لغات) د مانا څخه نــاپیېلــی شــو او د ویــي د څپــو (سیلابونو) پوزې وتړل شو یعنې د ویـي (لغـات) هـر سیلاب ته یو انځور (تصویر) ونیول شو. پـه دې تـوګه د سیلابونو یو سیستم منــځ تـه راغــی. د دی ګټه داوه چې هماغه یو انـځور بـه پـه منختلفو وییـو (لفظـونـو) کې استعمالیده چې یو شانته سیلاب به یې درلود. د دی ډول انځوري لیکونو بېلګې سومیری (Sumere) لیك دی چې له میلاد څخه دری نیم زره کاله دمخه اټکل کــېږي، د مصــر هــیروغلیفي (Hieroglyphe) لیك چې له میلاد څخــه دوه زره نهــه سـوه کالـه دمخه اټکل کېږي، مېخي لیك، پونیځي (Phonizie) لیـك

او چيني ليك دی. د تورو (حروفو) ليك له ميلاد څخه زر کاله دمخه د انځوري ليکونو د ودی په نتيجه کې منځ ته راغلی چې يو ډول د ګړونو سيستم دی يعنې هر ګړ ته چې د سيلاب يوه برخه ده يو توری نيول شوی دی. بيا دغه ليك ايټالويانو واخيست او نوره وده يې ورکړه او لاتيني ليك ترې منځ ته راغی چې نن ورځ يو زيات شمېر هيوادونو په لږ تغير سره خپل ګر زولي دي يعنې د هغه ګړونو له پاره چې د لاتيني ژبې په تورو کې نه و خپل توري يې جوړ کړي يو يا دوه يا زيات توري يې د يوه ګړ له پاره نيولي دي.
(Duden, Bd3, 1962)
لنډه داچې هره يوه د غږ ژبه د ټاکلي شمېر ګړونو څخه کار اخلي چې د غږ تر ټولو کوچنۍ برخه ده نو د ليك د ژبې له پاره هم همدغه "ګړ" تاداو ګرزول شويدی. د ليك ژبی د ودی په نتيجه کې د هر يو ګړ له پاره يو توری (حروف) نيول شويدی. په دی توګه د غږ ژبه د ليك په ژبه اړول شوې ده او د ليك ژبه بېرته په غږ ژبه اړول کيدلې شي. په نړۍ کې اوس هم

داسې ژبې شته چې خبرې پرې کېږي خو لا د لیک ژبې نه دي ګرزېدلي لکه په بره پښتونخوا کې نورستاني ژبه. خو په صنعتي هیوادونو کې د ړندو له پاره هم یو خاص ډول لیك شته دی چې ړانده یې په لیك د ګوتو ګرزولو په واسته لوستلې شي.

## لاسي لیک او سړیتوب (Perasonality)

یوازې د غږ ژبه د ساوالو (روحي) لړونو سره اړیکي نه لري بلکې د لیك ژبه هم د لیك مانا په ښودنه (Graphology) کې (د لیك چې په لاس لیکل شوی وي) د ټاکلو ښنو ښنانو له لیارې د سړیتوب (Personality) ټاکلي لړونه راپه ګوته کوي. د دغه ښنوښنانو ځینې مهمې دا دي.

**کوچنی او غټ لیک:-** کوچنی لیك د بې ډاډۍ، د احتیاط، د کموالي د احساس د شوموالي او په ځان باندې د باور نه لرو مانا ورکوي. غټ لیك بیا د بیدارۍ، سخیتوب، لری لید او په ځان د باور مانا لري.

**نرم او ټينګ ليک**:- د ليك د ټينګوالي او نرم والي د معلومولو اسانه لاره داده چې ټينګ ليك د عادي كاغذ شاته خاپونه پريږدي او د ليك كرښې او خاپونه د ليك د پاڼې تر شا ښكاري. نرم ليكل شوې ليك بيا د كاغذ تر شا خاپونه نه پرېږيدي.

ټينګ ليك د ډېرې انرژۍ، ژونديتوب او كلكې ارادې او خپلې ارادې ته د عمل د جامو اغوستلو د توان مانا لري نرم ليك د احتياط، نرمۍ او غاړې اېښودلو (تسلمېدلو) مانا لري.

**كوږ او نېغ ليک**:- ښي اړخ ته د ليك كوږوالې بهرنيز خويه (Extravertierten Type) انسان مانا لري او كيڼې خواته د ليك كوږوالې د ننيز خويه (Introvierten Type) انسان موږ ته راپه ګوته كوي.

نېغ ليك چې نه ښي اړخ ته كوږ وي او نه كيڼ اړخ ته كوږ وي او سيخ پورته ولاړ وي د دننيز او بهرنيز خويه (Ambiaqual) انسان ښنبه ده. بهرنيز خويه (Extravertierten Type) د بهر و خواته ميلان لري،

ټولنیز او ډله ایز وي یعنې د ډلې او د وګړو سره تماس یې خوښېږي او د ټولنې سره د سمون توان لري او ژر د اغېزیې لاندې راتللې شي.

د ننیز خویه Introvertierten انسان بیا د دننه خواته میلان لري. ګوښه ایز، ځانګړی او خود پرسته وي او د تخیل (Phantasie) له پلوه غښتلی او بډای وي

د ننیز او بهرنیز خویه (Ambiaqual) انسان بیا هم ګوښه ایز او هم ټولنیز وي. د دې ډول انسانانو توازن او انډول برابر وي (Koch, 1957, Graser, 1970).

دلته په کار دي چې دا هم وویل شي چې د لیك مانا د ښودنې (ګرافولوژي) دغه دوه لومړی نښې (کوچنی او غټ لیك، نرم او ټینګ لیك) د پښتو پر لاس لیکل شوي لیك له پاره پوره اعتبار لري خو دغه دریمه نښه (کوږ او نېغ لیك) څېړنې ته اړتیا لري ځکه چې د پښتو لیك د ښي څخه د کیڼ و خواته لیکل کېږي او د لیك مانا د ښودنې (ګرافولوژي) څېړنې د اروپایي هیوادونو په لاس لیکونو چې د کیڼې څخه ښي خواته لیکل کېږي شوي دي. که څه هم دا واقعیت د څېړنې

د اړتیا له پاره خبرې نه کوي چې اکثره انسانان په بنې لاس لیکل کوي او هم یې د ژبې مرکز د دماغ یا مغزو په کینه خوا کې دی او په دې برخه کې د مختلفو هیوادونو د وګړو په منځ کې توپیر نه شته دی.






# د سور او تال یا موسیقي ژبه

موسیقي هم د ژبې یوه بڼه ده. دا ژبه د "سور" او "تال" (Rhythm) څخه جوړه شوې ده.

"سور" د برابروالي مانا لري د بېلګې په توګه کله چې د سیتار د پنځو تارونو غږونه یو له بل سره برابر شي نو مونږ وایو چې "سور" شو. د سور د لفظ پوله یوازې د موسیقی په الو پورې تنګه نه ده بلکې په نورو نښتونو کې هم پکارول کېږي لکه دا سړی بې سوره دی. هنرمندان او فنکاران د موسیقي د ژبې سره کلك اړیکي لري او د موسیقي په یوه یا مختلفو الو یو له بل سره په سور کې مختلف تالونه غږولې شي. په لوېدیز والو ټولنو کې د موسیقي د زده کړی له پاره یو ډول انځورونه شته دی چې د نوټ په نامه یادېږي خو په پښتني ټولنه کې د موسیقي د غږولو له پاره د نوټ کوم سیستم نه شته دی. په عنعنوي توګه د رباعي، غزل، لوبی، داستان، چاربیتې بګتی او داسې نورو تالونو تر مینځ توپیر کېږي او د

هنرمندانو د يو كول څخه بل كول ته رسول كېږي.
ځيني هنر منډان د موسيقي د الو د غړولو سر بېره خپله سندرې هم وايي چې د سندر غارو په نامه يادېږي. ځيني نور بيا خپله شاعران هم دي چې د مجلسي شاعرانو په نوم يادېږي دوی د خپل دې توان څخه د موسيقي د ودې او پراختيا له پاره كار اخلي.
د پخوانيو سندرغاړو ډېره كي نالوستي كسان و او سندرې به يې په يادو يادولې خو د اوسني هرمندانو ډېره كي لوست او ليك كولې شي او ځينو يې لوړی زده كړې هم كړي دي. دوی په عنعنوي راپاتې شوو تالونو قناعت نه كوي نوی تالونه جوړوي او يا د نورو ژبو د موسيقي تالونه د خپلې ژبې په قالب كې راولي او په دې ډول د موسيقي ژبې ته نوی رنګ او خوند وركوي او پراخوي يې په پښتو كې د هندي تال د رواجولو په پلرونو كې [رحيم غمزده] شمېرل كېږي چې خپله شاعر او د لوړ تخيل څښتن دی. ځيني نور هنرمندان چې د لوړو زده كړو خاوندان دي عنعنوي تالونه په نوي ډول سمبالوي. په دې ډله هنرمندانو

کې استاد یارمحمد راځي چې د پوهنتون استاد دی.
د ده د زیات شمیر نوښتونو په ډګر کې د غزلونو د امیل یا ځنځیر نوښت خورا خوندور دی.
دلته دی د یو شمیر غزلونو څخه چې یو هومره څپې (سیلابونه) لري او د مفهوم او مانا له پلوه یو بل ته نژدې وي امیلونه یا ځنځیرونه جوړوي او په موسیقي کې یې د داستان په بڼه کې وړاندې کوي. د غزلونو د دې داستان ارزښت یې په دې کې پروت دی چې که یوه برخه یې څوك وانه وري نو د بلې برخې سره اړیکې نه ستونزمن کیږي او د پاتې برخې څخه چې نوی غزل وي پوره خوند اخستلې شي. موسیقي د پښتنو په حجرو او دیرو کې لویه شوې او د پښتني کلتور برخه ده د حجری مجلس پښتنو مشرانو نه یوازې پاللې بلکې خپله یې هم کله نا کله رباب یا سیتار غږولې دې د حجری د موسیقۍ په برخه کې رضوان منور او شاځوان منور نوي تالونه رایستلي دي او دا موسیقي یې لاپسې خوندوره او رنګینه کړې ده.

د پښتو د موسیقي بابا ([1]) استاد خیال محمد او هدایت الله د غزل موسیقي ته ژوند وربښلي دي.
ښاغلي ماسټر علي حیدر ګڼ شمېر نوي تالونه په پښتو موسیقي کې ایجاد کړي دي ګلزار عالم، سیدا ګل مینا، هما، کشور سلطان، ټکر او رسول باچا په موسیقي کې د بېلو بېلو تالونو نوښتګر دي.
د نوښتګرو هنرمندانو کړه غټه ده چې د ټولو نومونه یادول یې ځانته کتاب غواړي. لنډه دا چې دپښتو په موسیقي کې نه یوازې نوي تالونه زیات شوي دي بلکې د الو شمېر پکې هم زیات شوې دی چې دایې د ودی او پرمختګ نښه ده. موسیقي د ساوالو(نفسي، روحي) لړونو سره اړیکي لري نو ځکه ویل کېږي چې موسیقي د روح غزا ده. موسیقي ټولنیز پوهنیز ارزښت هم لري د بېلګې په توګه په ساپوهنه کې د موسیقي څخه د ځینو ساوالو (نفسي او روحي) ناروغیو د درمل د لاری په توګه کار

[1] دا نوم د پښتنو د ټولنیز اولسولیز ګوند (پښتون سوسیال ډیموکریټیک پارټۍ) له خوا په جرمني کې پر کال ۱۹۹۲ ور کړل شوې دې.

اخستل کېږي چې دلته زموږ د خبرو موضوع نه ده.
لنډه دا چې موسيقي د ژوند د ډېرو اړخونو سره اړيکې لري او بې له موسيقي ټولنه ګوډه او ژوند نيمګړی دی.

# معیاري ژبه او پوهنیزه ژبه

ژبه ټولنیز ملکیت دی چې یو عام اړخ او څو خاص اړخونه لري.

**د ژبې عام اړخ:-** د ژبې عام اړخ د هغه وییو (لغتونو یا لفظونو) څخه جوړ شوې دې چې د ټولنې عام وګړي پرې ګړیږي او پوهیږي لکه سترګې، سپوږمۍ، بنګړی، ژمی او داسې نور.

د ژبې عام اړخ ته معیاري ژبه هم وایي چې د ویي (لغتونو) پانګه یا زېرمه یې (ذخیره) زیاته ده چې د ژبې د ګرامري قاعدو خاکه جوړوي.

**د ژبې خاص اړخونه:-** هره پوهنه د خپلو ربړو د حل له پاره یو شمېر وییی (لغاتونه) پکاروي ډ بیلګې په توګه فزیك پوهنه، د کیمیا پوهنه د خپلو ربړو د حل لپاره د ژبې د عام اړخ د وییو سر بېره یو شمېر خاصو وییو (لغتونو) ته اړتیا لري چې د ژبې خاص اړخ جوړوي.

د ژبې دا خاص اړخ د ژبې دعام اړخ د مرستې په پرته نیمګړی او کار نه ورکوي. په نورو تورو سره د ژبې خاص اړخ لږ شمېر وي پانګه لري چې بې د عام اړخ د وییو (لغتونو) د پانګې او ګرامري قاعدو د مرستې ګوډ او شل او د کاره لویدلي دي. مسلکي پوهنیزې ژبې د ژبې د عام او خاص اړخ ټولګه ده.

**لهجې**:- زموږ په ژبه پښتو کې درې لهجې په نظر راځي چې یوه لهجه یې قندهارۍ، بله پېښورۍ او دریمه یې د پکتیا لهجه ده چې په دې لهجه کې "الف" په "و" بدلوي او "و" په "یې" بدلوي.

د پکتیا لهجه عامه شوې نه ده خو قندهارۍ او پېښورۍ لهجې عامې شوې دي او د پښتو په لیك دود کې هم ورته پام کېږي او توري ورته ټاکل شوي دا توري د دوه غږه تورو په نامه یادېږي چې یو غږ یې د پېښورۍ لهجې پورې او بل غږ یې د قندهارۍ لهجې پورې اړه لري. د بېلګې په توګه د "ښ" توری هم "ش" او هم "خ" ویل (تلفظ) کېږي. له دې کبله د

پېښورۍ لهجې پختون چې په قندهارۍ لهجه کې
پشتون ویل کېږي. په "ښ" یعنې پښتون لیکل کېږي
چې په قندهارۍ لهجه "ش" او په پېښورۍ لهجه کې
"خ" تلفظ کېږي همدغسې په ږیره چې قندهارۍ
لهجه کې ژیره ورته ویل کېږي ږیره لیکل کېږي. د
دوه غږه تورو لپاره په نورو ژبو په تېره بیا په
انګلیسي ژبه کې کوم عام منل شوی لیك دود نه شته
او سړی نه پوهېږي چې پښتون څنګه په انګلیسي ژبه
ولیکي دا به په راتلونکي کې د ژبپوهانو دنده وي
خوښه به داوي چې زموږ د پښتنو ژبپوهانو په دې
برخه کې کوم نوی توری غوره نه کړي او موجوده
تورو څخه په ترکیبي ډول کار واخلي ځکه که نوي
توري غوره شي نو د هغې د لیکلو لپاره به نوي
ماشینونه ضروري وي تر کیبي توري به لږ ځای ډېر و
نیسي خو د نوي ماشینونو د جوړولو ضرورت به نه
وي او سړی به د موجوده ماشینونو څخه کار اخستلې
شي. پخپله په انګلیسي ژبه کې هم د ترکیبي لارې
څخه کار اخستل شوې دې د بېلګې په توګه د "ش"

له پاره دوه توري (SH) همدغسې په جرمني ژبه کې
هم دا اصول چلېږي د "ش" د توري له پاره (Sch) درې
ږري نيول شوي دي.

# ادبي ژبه

مونږ د ادب د پېژندنو (تعریفونو) په دریاب کې ځان نه غوپه کوو او په دې باندې بسیا کوو چې د ادب لفظ په پښتو کې د عوامو په ژبه کې د روزنې او اخلاق په مانا سره کارول کېږي. د بېلګې په توګه دا هلك بې ادبه دی. یعني دا هلك روزل شوې نه دی یا بد اخلاقه دی.

خوشحال خان بابا (۱۶۴۳ - ۱۷۲۱ع) هم د ادب لفظ د روزنې او اخلاقو په مانا سره کاره وي چې وایي

ادب دادی چې او به ښبې
په درې دمه به یې ته ښبې
چې یې نوش په یوه دم دی
هغه اوبښ دی نه ادم دی

(ارمغان خوشحال، بی کاله مخ ۹۱۲)

حمید بابا هم همدا خبره پخوې چې وایي

پــه زړه مـــهر بـــه خولــه قـــهر ځوی تـــه بويـــه
څه ښه وايـــــي چېرتـــــه دب هلتـــــه ادب
(عبدالحميد مومند ديوان ۱۹۸۳)

خو ادبي ژبه لکه د پوهنيزې ژبې په شان ځانته ويـي پانګه (د لفظونو زېرمه) نه لري بلکې هغه ژبې ته ويل کېږي چې د ژبې ويي (لفظونه) په کې په نوي نښتون کې استعمال شوي وي. د رحمت شاه سائل دا شعر دويي (لفظونو، نومونو) د نوي نښتون بېلګه ده.

ګرانــه پــېښوره زه ګونـګی نــه يــم خــو څه وکــړم
هېڅ ويلې نــه شــم چــې د وس ژبــه مــې غــوټه ده

(رحمت شاه ســائل: د ښايســتونو د پســرلي بادونــه، پېښور دوهم چاپ ۱۹۹۵ع)

رحمت شاه سائل په دی شعر کې وس ته ژبـه ور کـوي او وايي چې د وس ژبه مې ګونګه ده. په دې توګه سره وس ژبـه پـېدا کـوي چـې د وخـت پـه تېريدولـو سـره عـامېږي. پـه لنـډو تـورو سـره ادبـي ژبـه نوښتـی

(Creativ) ژبه ده خو دا نوښت (Creation) بایده دي
چې د سم سوچ (منطق) د اصولو سره برابر وي یعنې
دوییو (لفظونو یا نومونو) د منل شوو ماناوو سره
ټکر ونه خوري د بېلګې په توګه که څوك ووایي چې
پیالۍ لیونۍ شوې نو دا هر چاته پته ده چې پیالۍ دا
خاصیت نه لري او نه لیونۍ کېږي نو دې ډول نوښت
ته اړتیا نه لیدل کېږي او ارزښت نه لري. هر څومره
چې یوه نوښت ته اړتیا (ضرورت) وي هغومره یې
ارزښت زیات وي. ادبي ژبه یوه منظمه برخه هم لري
چې د وییو (الفاظو) غږونه پکې د وزن (تال) او قافي
په بنسټ په مختلفو بڼو کې تنظیم شوي وي او یو
نظم لري چې د شعر په نامه یادېږي. رحمت شاه سائل
یې د لفظونو تصویر ګڼي "هغه تصویر چې ځان هم په
کې ښکاري، قام او وطن هم، د قام او وطن ثقافت او
تاریخ هم په کې ښکاري".
(سائل په پایکوب ۱۹۹۳) مونږ د سائل دا خبره د
ساپوهنې په رڼا کې پخوو او د شعر او شاعر اړیکې

څېړو لومړی د شاعر سرېتوب (Personality) انځور وو.

**شعر او شاعر:-** که د انسان ژوند ته ځېر شو نو وبه وينو چې د ژوند په مختلفو پړاوونو کې منختلفې اړتياوې منځ ته راځي خو يوازې هغه اړتياوې سرته رسېږي چې د ټولنې د دود، دستور او قوانيونو سره په کومه کې چې سړی ژوند کوي برابرې وي. هغه اړتياوې چې د ټولنې د دود، دستور او قوانينو سره سمون نه خوري د ټولنې له خوا غندل کېږي او پوره کېدل يې منع او په سزا رسېږي له دې کبله د دغه اړتيا د پوره کولو هيلې (لاشعور) کې ځای نيسي او پټېږي. کومې چې سړي ته ډېرې ګرانې وي او مينه ورسره لري نو د سرته رسېدلو هڅه د لاسه نه ورکوي د لاشعور څخه تخيل ته ځي چې غېرې رښتيانې (غېر حقيقي) نړۍ پورې تړلې دي او رښتيانې (حقيقي) نړۍ په شان په کې دا هيلې په سزا نه رسېږي. په تخيل کې د دې هيلو د سرته رسېدلو هڅه کېږي

تخیـل د سـر تـه نارسـېدلو او شـړل شـوو هیلـو او ارزوګانو کور دی او همدا د تخیل محرکه قوه هم ده.
کله چې د مینې په بدرګه کې چې د ښکلا مـور ده احساسات او جذبات چې د حقیقي نـړۍ پـورې اړه لري د تخیل سره یو ځای شي نو سرته نا رسـېدلې هیلې رښتیاني نړۍ (حقیقي نړۍ) تـه بېرتـه لاره پیـدا کړي.
څه وخت چې دنني یا بهرني علتونو له کبله د سړي احساسات او جذبات راوپارېږي نو بیا د سزا څخـه دومره نه ډارېږي او جرئت یې زیاتېږي.
ملي شاعر ملنګ جان هم دا خبره تائیدوي

حـق بـه وایـم سمدسـتي کـه وژل کـېږم
جذبـات د شـاعرۍ دي نـه ویـرېږم

( د ملنګ جان: خـوږې نغمـې، پښتـو ټولنـه، کـابل ۱۹۶۹ ع).
شـاعران همـدا خلـك دي چـې د خپلـو راپـارېدلو احساساتو او جذباتو په واسطه د مینې په زور سره

خپلې سرته نارسېدلې هیلې، ارزوګانې او ارمانونه د تخیل څخه راخلي او د الفاظو په نوي نظم کې یې ټولني یعنې رښتیانی نړۍ (حقیقي نړۍ) ته په داسې بڼه کې وړاندې کوي چې له یوې خوا په سزا ونه رسېږي او له بلې خوایې هیلې د عمل جامې واغوندي. د پورتنو ټکو څخه راپه ګوته کېږي چې د شعر او د شاعر تر مینځ اړیکې شته دي. په شعر کې دشاعر سرته نا رسېدلې هیلې، ارزوګانې او ارمانونه پراته دي. د دې ارمانونو او ارزوګانو په بنسټ چې د شاعر د ژوند د مختلفو پړاوونو محصول دی د شعر موضوع هم ټاکل کېږي هر شعر یو موضوع لري چې د شاعر د سړیتوب (خاصیت) لړونه پکې لیدل کېږي.
" شعر د شعر دپاره" په دې حالت کې خپله شعر موضوع جوړوي. لنډه داچې سړی د سائل دا خبره تائیدولې شي چې شعر د لفظونو تصویر یا انځور دی چې هم په کې شاعر ځان او هم جهانویني. شاعر پخپل شعر کې د یو چا یا څه شي سره ځان ورته او مشابه کوي او یو یا ډېر رولونه لوبوي لکه د ګل،

بلبل، تندر، ناصح، کتونکی، تماشه کوونکی، د یوې ډلې د غړي یا د کومې ایډیولوژۍ د نماینده، د یوې ډلې د مشر یا مبلغ او داسې نور رولونه لوبوي په شعر کې د شاعر د رول د راسپړېدلو په واسطه د شاعر د سړیتوب (Personality) او هم د هغه د جهان په هکله معلومات لاس ته راتللي شي. د بېلګې په توګه د یوې ډلې د مشر یا غړي او که صرف د کتونکي او تماشه کوونکي رول لوبوي.

زیګموند فراید (Sigmund Freud) وایي چې هر څومره که سړی د شعر په فن کې معلومات ولري شاعر کیدلې نه شي (Freud, 1963) .

شاعري یو پیدا ښتي استعداد دی. شاعران هم د احساساتو او جذباتو له مخې او هم د سرته د نارسېدلو هیلو او ارزوګانو له مخې چې په شعر کې د شاعر د رول د راسپړیدلو له لیارې یې پته لګېدلې شي په ډلو ویشل کېدلې شي عوام د احساساتو له مخې مجلسي شاعران یعنې هغه شاعران چې سندرې وایي په بادي او جوشي یا اتشي ویشي.

بادي هغه شاعرته وايي چې دشعر څپه پرې د باد په شان راشي او بيا پرې تېره شي يعنې احساسات يې را وپارېږي او بيا ژر مړه شي خو د جوشي يا اتشي شاعر احساسات چې را وپارېږي ژر نه مړه کېږي او پر له پسې تودېږي او په جوش کې راځي. مينه، احساسات (جذبات) او تخيل د شعر د جوړولو وسيله ده. چې ترکيب يې د شعر جنسيت (ځرنګوالى يا کيفيت) ټاکي، هر څومره چې په يوه شعر کې تخيل زيات کارول شوې وي هغومره پکې نوښت زيات وي.
د پښتو د شعرونو مختلفې بڼې لکه غزل، داستان، بګتۍ، چاربېته او نور لفظونه د غړونو نظم په وزن او قافيه ولاړ دي په تېره بيا لنډۍ چې شاعر يې معلوم نه دی او د اولسي ادب برخه ده پخپل وزن او قافيه کې هېڅ بدلو نه مني د لنډۍ لومړۍ مسرۍ نهه څپې (سيلابه) وزن لري او په اخر کې يې "هـ" راځي يعنې قافيه يې په "هـ" سره ده که چېرته په وزن کې يې ګوتې ووهل شي يوه څپه يې زياته يا کمه شي او يا يې قافيه بدله شي نو بيا ورته څوك لنډۍ

ویلی نه شي. لنډۍ که د موسیقي په څپو کې راشي نو بیا د مسرۍ یا ټپې په نامه یادیږي او که د سروکي سره یو ځای شي د ټیکۍ په نامه یادیږي . په ځینو ژبو کې لکه جرمني د شعر له پاره قافیه ضروري نه ده او یوازې وزن بسیا کوي چې د هغوی د موسیقي د تال سره سور (برابر) کېدلې شي. دی ډول شعر ته ازاد نظم یا ازاد شعر وایي چې پښتوته یې هم سر راننه ایستلې دی دلته دا پوښتنه راپېدا کېږي چې دا ډول شعر څومره د پښتو ژبې په قالب کې راتلای شي او دپښتو د موسیقۍ د تالونو سره سور کیدلې شي. په پښتو کې خو وزن او قافیه د شعر له پاره شرط ده او که ویې ونه لري نو نیمګړۍ دی لکه چې یو انسان لاسونه او یا پښې ونه لري په هر ډول سره دا د ژبپوهانو کار دی چې دې ډول بې قافې کلام ته د شعر مقام ورکوي او که موزون نثر یا ادبي ټوټه یې ګڼي.

# د ژبې د توان او ودې پېمانې

د ژبې توان (ظرفیت) د ګړونو یا غږونو د شمېر یعنې د تورو د شمېر له مخې او د ژبې وده دوینې پانګې (لغتونو د پانګې) څخه چې یوه ژبه یې لري تاکل کېږي. هر څومره چې د یوې ژبې دګړنو یا غږونو یعنې تورو شمېر زیات وي هغومره د دغې ژبې توان (ظرفیت) هم زیات وي یعنې ډېر غږونه پکې کارول کېږي. برخلاف هر څومره چې د یوې ژبې د تورو یا ګړونو شمېر کم وي په هغومره اندازه یې توان هم کم وي. خو دا د دې مانا نه لري چې یوه ژبه چې توان یې زیات وي هغه دې خامخا پرمختللې وي او زیاته وده یې کړې وي. دا د دې پورې اړه لري چې یوې ژبې ته څومره کار شوی دی او څومره دوییو (لغتونو) پانګه او ذخېره لري. یوه ژبه به ډېر توان (ظرفیت) لري خو کار به ورته شوی نه وي نو دوییو پانګه (د لغتونو پانګه) به یې کمه وي او بله ژبه به لږ توان (ظرفیت) لري خو کار به ورته ډېر شوې وي او وییو پانګه (د

لغتونو پانګه) یا ذخیره به یې ډېره وي د بېلګې په توګه لوښی راواخلی، یو لوښی به غټ وي او ډېرې اوبه به پکې ځایېږي خو اوبه به په کې کمې وي او بل لوښی به کوچنی وي خو اوبه به په کې ډېرې وي او د غټ لوښي په پرتله به ډېرې اوبه لري. مقصد دلته دا دی چې هغه ژبه چې ډېر توان (ظرفیت) لري د هغې د غړونو شمېر زیات دی او کولې شي چې د خپلو غړونو څخه زیات شمېر نومونه جوړ کړي او هغه ژبه چې توان (ظرفیت) یې کم وي نو د غړونو شمېر یې کم دی. نه شي کولې چې د خپلو غړونو څخه زیات نومونه جوړ کړي مجبوره ده چې د نورو ژبو څخه نومونه یا لفظونه واخلي. په نورو تورو سره هغه ژبې چې توان یې (ظرفیت) زیات وي هغه پخپل ځان کې د ودې زیات قابلیت لري او د نورو ژبو لفظونو یا نومونو ته اړ نه وي او هغه ژبې چې توان یې کم وي هغه پخپل ځان کې د ودې قابلیت نه لري.

## ژبه او پېښه (واقعیت)

ژبه د پېښې (Reality) سره اړیکې او د پېښې (واقعیت) د پېژند او درك قوه ده. میك ګریټ (Mcgrath) لیکي چې "په ژبه کې شیان او معلومات په ټولګیو ویشل کېږي. زموږ ژبه د پېښو (واقعیت) د پېژند وسیله ده.

(Mc grath, 1970) دی زیاتوي چې که چېرته په دوه ژبو کې د یوه شي (څیز) یا پېښې (reality) لپاره یو ډول (رقم، رنګ) لفظونه وي نو بیا د شي یا پېښې (واقعیت) پېژند هم د دې دواړو ژبو د ویوونکو یو شانته دی بر خلاف که بېل بېل ډول (رنګ، رقم، قسم) لفظونه وي نو بیا د شي یا پېښې (reality) پېژند (درك) او تصور یې هم مختلف دی. د بېلګې په توګه زموږ په ژبه کې د واورې د ټولو بڼو (څهرو یا شکلونو) له پاره یو لفظ شته دی. د اسکیمو (Eskimo) قوم داسې یوه ژبه لري چې د واورې د مختلفو بڼو یا حالتونو تر مینځ په کې توپیر کېږي،

واوره د وریدلو په حالت کې، واوره د ځمکې پر سر، واوره د کور د بام پر سر.

له دې کبله د اسکیمو (Eskimo) او زمونږ د واورې پېژند او تصور مختلف دی د شیانو او پېښو پېژند (درك) او تصـور د ژبـې پـورې اړه لـري او ژبـه زده کېږي. زمونږ د شیانو او پېښو پېژند (درك) او تصور هم د ټولنیز کېدلو د برخې په توګه د زده کړې په لړۍ (پروسه) ولاړ دی. (Mcgrath, 1976)

د پښتـو ژبـه چې ډیـره لرغونـې ژبـه ده د ډېرو پـېښو (واقعیتونو) د پېژندلو اینه یا هنداره ده د پښتـو ژبې په مرستې سړی کولې شي چې ډېرې پېښې وپېژنـي. مـا د پښتـو ژبـې پـه مرستـه دا پـېښه او واقعیـت (Reality ) و پېژنـده چـې د انسـان پـه وجـود کـې د ساایزو پېښو دوه مرکزونه دي چې یو دماغ او بـل زړه دی. حـال دا چـې د لویدیزو په ساپوهنه کې دمـاغ د ټول ساایزو یا نفسي توکونو مرکز ګڼل کېږي، خو کـه سړی د پښتو ژبې پر بنسټ د شیانو او پېښو جاج

واخلي نو دماغ د عقل او فکر مرکز دی او زړه د احساساتو، جذباتو او غوښتنو.لکه زړه مې نه غواړي چې هلته لاړ شم، زړه مې خفه دی، زړه مې خوشحاله شو او داسې نور ډیر څه د زړه پورې تړل کېږي. دماغ او زړه دواړه د سااېزو (نفسي، روحي) توکونو واکمن مقامونه دي خو دا دواړه مقامونه یو له بل سره تړلي دي او ګډ کار کوي.

د دماغ او زړه د دندو دا ویش د جذباتو او احساساتو (قار، ویرې) د جسماني (فزیولوژیکي یا طبي) بدرګو په واسطه مدلل کیدلې شي، چې د زړه د حرکاتو او کار پورې اړه لري.

نه یوازې په ساپوهنه کې بلکې پخپله ژبپوهنه کې هم پښتو د زیات شمېر پېښو (واقعیتونو) د پېژندنې سبب ګرځیدلې شي.

دلته الکزاندر هماګایف [1] سره د مرکې یوه برخه راوړو چې وايي "ما په یوه مجله کې لوستي و چې د پښتون د قام د ژبې پښتو د ګرامر پر مرسته د - ویدـ د کتاب الفاظ چې په سانسکرت ژبه لیکل شوي دي مانا کیدلې شي. زما له دې ژبې سره مینه پیدا شوه چې دومره پخوانۍ ده او ګرامري قاعدو یې پر پخوانیو ژبو اغېزه کړې او اوس هم پرې اولس غږیږي او د یوه قام ژبه ده نو د ژبو په انستیتیوت کې مې زده کړه. دی زیاتوي چې پښتو ژبې ته د پاملرنې له لارې ډیرې پیښې (واقعیتونه) راسپړل کیدلې شي، چې نه یوازې د پښتنو لپاره بلکې د ټولې سیمې او نړۍ لپاره ارزښت ولري" (هماګایف، ۱۹۹۶).

---

[1] الکزاندر هماګایف روسی دی او اوس د ازبکستان راډیو د پښتو څانګې مشر دی او په پښتو رواني خبرې کولې شي. دی په ۱۹۹۶ کال کې جرمني ته راغلې و او ما ورسره مرکه وکړه چې د ویدیو فلم ترې جوړ شوی دی، او زما سره دی دا پورتنی ټکی د دغه مرکې څخه را اخیستل شوې دی.

په پښتو ژبه کې د ښځې او نر توپیر د نورو ژبو په پرتله زیات دی ښځې د ځان لپاره الفاظ په بل ډول کاروي.

د پښتو ګرامر هم ځانګړې قاعدې لري" (هما ګایف ۱۹۹۶ع).

# ژبه او سوچ (فکر، اند)

ژبه له یوې خوا د سوچ (اند، فکر) د څرګندولو (پوهېدلو او پوهولو) وسیله ده یعنې انسان په لغتونو او لفظونو کې خپل سوچ څرګندوي او له بلې خوا فکر (اند) خپله د ژبې یوه بڼه یا څېره ده. د دې لپاره چې په دې خبره مونږ ښه پوه شو په یو مثال سره د فکر مهم اړخونه را په ګوته کوو.

مثال: کله چې سړی په ژمي کې په حجره کې د شپې ښخ اوده وي او سهار را پاڅي او له حجرې څخه بهر را ووزي او ووینې چې زمکه لمده ده نو فکر کوي چې د شپې باران شوی دی. که دې مثال ته ځیر شو، نو وبه وینو چې سړي باران پخپله نه دی لیدلی او حس کړی یې هم نه دی، خو د زمکې د لمدوالي په واسطه په دې پوهېږي یا خبرېږي. په نورو تورو سره فکر د ناسیده (غیر مستقیمې) پوهېدنې یا خبریدنې لړۍ (پروسه) ده چې دا د فکر یو اړخ دی. دغه ناسیده پوهېدنه یا خبریدنه د شیانو په منځ کې د اړیکو او د ښستونونو په بنسټ ولاړه ده. تال چې باران شوی دی زمکه یې لمده

کړې ده او د دغه نښتون ځخه سړی خبر دی نو ځکه
وايي چې د شپې باران شوی دی دلته د فکر بل اړخ
راښکاره کېږي چې هغه عمومي والی دی یعنې د
زمکې د لمدوالي او باران په منځ کې نښتون عمومي
خوی لري او د کوم یو خاص باران پورې د زمکې
لمدوالی تړلې نه دی. هر باران زمکه لمده وي. په نورو
تورو سره دا د دې مانا لري چې د فکر په لړۍ (پروسه
کې مونږ د شیانو ذ یوې ډلې د عمومي خاصیتونو سره
مخامخ یو. فکر د یوې ډلې شیانو د عمومي
خاصیتونو انعکاس او د شیانو په منځ کې د عمومي
نښتونونو او اړیکو موندنه ده. د فکر په ناسیده توب
او عمومیتوب کې د ژبې سره د فکر اړیکې پراته او
نغښتلي دي. مطلب دا چې د فکر په لړۍ کې مونږ تل
د عمومي نومونو او لفظونو سره سرو کار لرو کوم چې
د یوې ډلې شیانو د ګډ او مهم خویونو ښکارندوی
دی. د مثال په توګه "کلك" لفظ د ډیرو شیانو خوی
جوړوي چې مونږ دغه ټول شیان چې کلك دي لیدلې
نه شو، خو فکر یې کولې شو. له دې کبله عمومي نوم

يا لفظ او فكر يو شى دى. فكر د ژبې د بنې يا څهرې په توګه د ژبې برخه او د ژبې پورې تړلى دى. هر فكر چې د انسان په سر كې پيدا كيږي بې له ژبني موادو څخه منځ ته راتللې او پيدا كيدلې نه شي. داسې فكر چې د ژبې د موادو څخه ازاد وي موجوديت نه لري. (Teplow, 1972). د ژبې او د فكر اړيكې له يوې خوا د ژبې د ارزښت مانا لري او له بلې خوا دا واقعيت راښايي چې هر څومره چې د انسان ژبه رسيدلې وي هغومره يې فكر هم رسيدلې وي. د دې واقعيت په رڼا كې د ژبې د ودې لپاره كار په كار دى. د ژبې د ودې او روزنې ځايونه كورنۍ، ښوونځي او پوهنتونونه دي. له دې كبله د دې هڅه ضروري ده چې په ښوونځيو او پوهنتونو كې بچيانو ته په مورنۍ ژبه پښتو د زده كړې امكانات برابر شي. پخپله مورنۍ ژبه زده كړه نه يوازې د فكر چې د سرېتوب كره برخه ده د سمې ودې مانا لري بلكې د قام د سوكالۍ او ودانۍ نښه هم ده چې د نورو قامونو سره يې دسيالۍ جوګه كوي.

## ژبنيز استعداد

لكه ښنګه چې مخكې مو راپه ګوته كړله ژبه د شيانو او پېښو لفظي انځور دئ. انسانان په لفظونو د شيانو پېښو د انځورلو په برخه كې مختلف استعدادونه لري. په روانو او روښانو الفاظو سره د شيانو او پېښو انځورونه د دې استعداد نښه ده. دا استعداد د يادښتې يعنې حافظې (Memory) د توان سره تړلى دى هر څومره چې د چا د (يادښتې) توان (ظرفيت) زيات وي هغو مره زيات لفظونه رايادولې شي چې د روانې او روښانې ګړيدنې (بلاغت او فصاحت) سبب ګرزي د روانې او روښانې ګړيدنې په ښتون كې موږ پخپل بل يو كتاب كې چې د هوښيارتيا تله نومېږي په ټاكلي توري په ټاكلي وخت كې د لفظونو يا لنډيو د ليكلو يا ويلو لاره راپه ګوته كړې ده چې د ليكلو شوو يا ويل شوو لفظونو يا لنډيو د شمېر په واسطه د روانې او روښانې ګړيدنې استعداد اټكل كېدلې شي. اوس يوه بله لاره په ښه كوو چې موږ ورته د يا

دښتي تله (Memory Test) وایو دا تله نه یوازې د
رواني او روښاني ګرېدنې د کچولو له پاره مهمه ده
بلکې د ښوونې او روزنې په برخه کې یوه ارزښتناکه
وسیله ده ځکه چې زده کړه بې له "یادښتي" یعنې
حافظې (Memory) څخه امکان نه لري.

# د یادښتې تله (Memory Test)

## بېلګه

ښودنه:- تاسې داشکلونه ښه په ځېر وګورئ او یاد یې کړئ (دومره وخت د کتلو له پاره ورکول کېږي چې څومره تاسې اړتیا لرئ)

١



٢



اوس په دې شکلونو کې را په ګوته کړئ چې کوم
تاسې لیدلي دي.



## تله

اوس نو دا شکلونه په ځېر وګورئ او یا دیې کړئ.



په دې شکلونو کې راپه ګوته کړئ چې تاسې کوم شکلونه لیدلي دي.



په دې شکلونو کې راپه ګوته کړئ چې تاسې کوم شکلونه لیدلي دي.



# دځوابونو پاڼه

نوم:

د کورنۍ نوم یا تخلص:

کسب یا دنده (وظیفه):

عمر په کلونو:

نېټه:

## بیلګه

| د یادولو انځورونو لمبر | د ځواب د انځورونو لمبر |
|---|---|
| ۱ | |
| ۲ | |

## تله

| د یادولو د انځورونو لمبر | دځواب د انځورونو لمبر |
|---|---|
| ۱ | |
| ۲ | |
| ۳ | |
| ۴ | |
| ۵ | |
| ۶ | |
| ۷ | |
| ۸ | |
| ۹ | |
| ۱۰ | |

# د سمو ځوابونو پاڼه

## بیلګه

| د یادولو انځورونو لمبر | د ځواب د انځورونولمبر |
| --- | --- |
| ۱ | ۴ |
| ۲ | ۶ |

# تله

| د يادولو د انځورونو لمبر | د ځواب د انځورونو لمبر |
|---|---|
| ۱ | ۳۳ |
| ۲ | ۱۸ |
| ۳ | ۳ |
| ۴ | ۴۳ |
| ۵ | ۳۷ |
| ۶ | ۲۲ |
| ۷ | ۴۷ |
| ۸ | ۱۴ |
| ۹ | ۱۰ |
| ۱۰ | ۲۹ |

ارزښتنه:- هر يو سم ځواب ته يوه نمره ورکول کېږي چې ټول لس سم ځوابونه امکان لري او لس نمرې کېږي. که چا سم ځوابونه د يادولو د انځورونو (شکلونو) لمبرو له مخې ورکړي وي او د لمبرو پرله پسې توب يې هم مراعات کړی وي نو بيا دوه نمرې

نوري هم ورسره اضافه کېږي چې ټولې ۱۰+۲=۱۲ نمرې کېږي.

| سم ځوابونه | مانا | |
|---|---|---|
| ۱ _ ۳ | کمزورې یا دښته | (حافظه) |
| ۵ _ ۶ | برابره یا دښته | (حافظه) |
| ۷ _ ۸ | غښتلې یا دښته | (حافظه) |
| ۹ _ ۱۰ | ډېره غښتلې یا دښته | (حافظه) |
| ۱۱ _ ۱۲ | ډېره زیاته غښتلې یا دښته | (حافظه) |

د تللو د تکرار څخه د زده کړې پیمانه هم راپه ګوته کېدلې شي.

## ژبه د انسان د ژوند په اوږدو کې

لکه څنګه چې ژبه د انساني نړۍ په تاريخ کې د زده کړې په لړۍ (سلسله) ولاړه ده د انسان ژوند د مور په ګېډه کې پيل کېږي او تر مرګه پورې دوام لري.
امريکايي پوهانو د خپلو څېړنو په ترڅ کې لا د مور په ګېډه کې د ماشوم يو شمېر غلي ګړونه اوريدلي دي او له دې څېړنې داسې نتيجه اخستې ده چې د انسان زېږېدو څخه د مخه هم د ګړونو يو خاص ميخانېزم لري (Salber, 1958)
خو دا د دې مانا نه لري چې د مور په ګېډه کې ماشوم ګڼى خبرې کوي يوازې دا مو ر ته راپه ګوته کوي چې د خبرو د توان بنسټ ور شوی دی چې وروسته بيا وده کولې شي. همدغسې کله چې يو ماشوم په اول ځل پيدا کېږي نو چغه کوي دغه چغه هم د خبرو د توان د بنسټ د جوړېدو مانا لري. سالبر (Salber) ليکې چې د "ډيوی (Dewey) او مارتي (Marty) له پاره د ژبې جرړې د ټولنيزې اړتيا څخه

اوبـــه اخلــــي او اردمـــــان (Erdmann) همبولــــد (Hamboldt) او لاځاريوس (Lazarus) بيا په دې برخه کې خاص ارزښت د ژبې او نورو ساوالو فعاليتونو او توانونو اړيکو ته ورکوي (Salber, 1958)

همدغســې د ستېرن (Stern) لـه پـاره د ژبــې بنسـټ لومړی د انسانانو د اړتياو د پوره کولو پر هڅه ولاړوو چې ورو ورو يې د سوچ (فکر) تصور، احساساتو او ارادې د ودې او څرګندولـو الـه وګرزيــده. (Stern, 1927)

ژبـه د تړول (سمت) سـاوال (نفسـي، روحي) ژونـد سـره تينګه تړلې او د ساوال (نفسـي، روحي) ژونـد پـه وده کې کره برخه لري او هم د ساوال ژوند جوړښت او وده په ژبه پورې اغيزه لري او د ژبې څرنګوالې (کيفيت، جنسيت) ټاکي. ژبه او ساوال ژوند يو لـه بل سره دوه اړخيزه اړيکې لري او يو له بل څخه بېلېدلې نه شي. د ژبې په ډډ او وده سرېسم نه شي پوهيدلې که يې د نورو ساوالو پيښو او ځواکونو څخه په ناپيیلي توګه د اشارو يو سيستم وګڼي او يا يــې د ګوښې او ځان

کړي توان نښه لکه د پوهېدلو او پوهولو (مفاهمې) اله وبولي (Salber, 1958) خو هر انسان چې په یوه ټولنه کې پېدا کېږي ځانته ژبه لري او په هره ټولنه کې چې څوک پېدا شي د همدغې ټولنې ژبه دود، دستوراو نور کړه وړه خپلوي. دا چې پښتني ټولنه د لویدیزوالو ټولنو سره ډیر توپیر لري نو موږ د څېړونکو د ټولنیزو (عمومي) نظریو څخه چې یوازې د لویدیزو ټولنو پورې تړلي نه وي او د پښتني ټولنې له پاره هم اتبار لري او د پوهنیزو لارو او میتودونو (Methode) څخه کار اخلو او په خپلو څېړنو او کتنو تکیه کوو.

کورنۍ:- کورنۍ د هرې ټولنې کوچنۍ برخه ده. د پښتني ټولنې کورنۍ د لویدیزوالو ټولنو کورنۍ یو کوله یا یو نسله کورنۍ ده او یوازې د مور، پلار او بچیانو څخه جوړه شوې او کوم بچی چې یې لوی شي هغه پخپله لاره ځي او د مور او پلار څخه بیلېږي د پښتني ټولنې کورنۍ د دوه یا زیاتو کولونو یا

نسلونو څه جوړه شوې ده چې مور، پلار، نیا، نیکونه، غور نیکونه او تر نیکونه پکې یوځای اوسېږي. دا کورنۍ د کولونو د تړون په بنیاد ولاړه ده کولونه پکې تر هغې په یوه کور کې اوسېږي تر څو چې تنګ شوي نه وي او کله چې کور تنګ شي نو بیا د بېل کور غم خوړل کېږي. دې ډول کورنیو ته ډله ایزې کورنۍ یا غټې کورنۍ ویل کېږي. هره کورنۍ چې د ټولنې یوه برخه ده د ټولنې سره د ژبې له لیارې سمون کوي. هر تن د خپلې کورنۍ له لیارې د ټولنیز کېدلو په لړۍ (سلسله) کې برخه لري. په دې توګه ژبه د انسان په ژوند کې د ټولنې سره د سمون او د ټولنیز کېدلو په لړۍ کې مینځ ته راځي. د ژبې زده کړه په هغه کورنۍ کې په کومه کې چې ماشوم پېدا شوې وي پیل کېږي خو دا زده کړه د ماشوم په ساوال او جسماني ودې ولاړه ده. ساواله (نفسي، روحي) او جسماني وده یو له بل سره تړلې ده او چاپېریال پرې متقابله اغیزه لري د ساوالو (نفسي، روحي) او جسماني توکونو پېدا ښتي جوړښتونه د چاپېریال د

متقابله اغیزې د لاندي د ژوند په مختلفو پړاوونو کې بشپړ او پخیږي. انسان د ژوند په مختلفو پړاوونو کې مختلفه زده کړه کوي. په دې کې د ژبې زده کړه هم شامله ده. په پښتني یا غټه کورنۍ کې د لویدیز د کوچنۍ کورنۍ په برخلاف ماشوم د مور او پلار سربېره د نیا، نیکه او کور د نور کسانو سره د جسماني او ساوالي ودې په لړ کې اړیکې پیدا کوي او کوچنۍ کورنۍ په شان نه وي چې یوازې د مور، پلار، خویندو او وروڼو سره یې لري. دلته د کوچنیو کورنیو په شان ځانګړي اخلاقي "وجدان" زه نه بلکې یو ډول ډله ایز اخلاقي زه یا وجدان وده کوي چې وروسته بیا د ټولنیز ژوند نماینده وي.

**د ورځني ژوند په ډګر کې څېړنه:** ما د ټولې ساوالي او جسماني ودې په نښتون کې پخپله غټه پښتنه کورنۍ کې که څه هم بهرني چاپېریال جرمني دی خپل پېدا شوي لمسیان پوهیال (۳,۱۱،۱۹۹۸) پتوال (۲۲،۷،۱۹۹۹) او سلما (۲۲،۱،۲۰۰۰) د

ژبې د ودې او زده کړې په برخه کې د منظمې کتنې لاندې ونیول چې سرې ورته د ورځني ژوند په ډګر کې څېړنه (Feld research) ویلې شي.[۲] د څېړنې په نتیجه کې د ودې لاندې پړاونه راپه ګوته شول.

۱) **د ملاستې پړاو:** دا پړاو له زیږېدلو څخه پیل کېږي او د ماشوم له ملاستې څخه د سر تر جګولو پورې رسېږي په دې پړاو کې ماشوم ژړا او موسکا کولې شي خو ژړا له موسکا څخه لږ څه مشره وي. د دې پړاو په اخرني وخت کې غوریدلې هم شي.

۲) **د ناستې پړاو:** دا پړاو د سرجګېدلو وروسته پیل کېږي او لومړی ماشوم دیوال یا بالښت ته د ډډې وهلو په مرسته کېنیني او بیا ازاد کیناستلې شي او تر خاپوړو دوام کوي په دې پړاو کې ماشوم څپې تکرارولې شي لکه بابا بابا یا دادا دادا او هم یې د

---

[۲] په ورځني ډګر کې د ماشومانو د کتنې څېړنې (Feld Reseurch) لویدیزوالو پوهانو لکه ستومپ (Stupf) او پریر (Preyser) پخپلو ځامنو کړي دي (Oerter, 1970 15.336 F)

خپل چاپېريال سره لږ څه سمون کړی وي او خپل چاپېريال کې د هر نوي شي څخه ډارېږي (دا پړاو په اوومه، اتمه يا نهمه مياشت پيل کېږي او يوې څخه تر درې مياشتو پورې دوام کوي).

۳) **د خاپوړو پړاو:** دا پړاو د لاسو او پښو د حرکت په واسطه پيل کېږي او د مېز يا بل شي ته د ودريدلو پورې رسېږي په دې پړاو کې ماشوم کله نا کله د خپلې خوښې شي پسې زور کوي او د يوې يا دوه څپو لغتونه ويلې شي (دا پړاو د ناستې د پړاو وروسته پيل کېږي او د ماشوم د يو کلنۍ يا يو نيم کلنۍ عمر پورې دوام کوي).

۴) **د ودريدلو پړاو:** د مېز يا بل شي په مرسته د دريدلو څخه وروسته پخپله دريدلې شي دا پړاو ډير لنډ دی يوه يا دوه اوونۍ وي او ګرځېدلو زده کړه په کې کېږي لومړی ودرېږي او رالوېږي او بيا ودرېږي بيا ودريدل زده کړي خو له ګام سره رالوېږي. بيا پاڅېږي او ګام اخلي تر څو چې ګرځېدل زده کړي.

**۵) د ګرځېدلو پــړاو:-** دا پړاو د اودریدلو وروسته (له یو کلنۍ نه نیولی تر یو نیم کلنۍ پورې) پیل کیږي او ښوونځي ته د تللو پورې دوام کوي. د دې پړاو په لومړي سر کې ماشوم څه نا څه د وییو پانګه پیدا کوي او په دې پوهېږي چې هر شی یو نوم لري او خپله هم یو نوم لري او د دوو یا دریو ویو جملې جوړولې شي لکه بابا لاړ، لالا قلم واخله. په دویم پړاو کې په لغتونو کې سوچ کولې شي، پوښتنې او بیانیې (څرګندونې) کوي.
ښوونځي ته په تګ سره لومړنی ټولنیز کېدنه پای ته رسېږي او دویمي ټولنیز کېدنې پړاو پیل کېږي چې له بلوغه پورې رسېږي چې ټول ساوال او جسماني جوړښتونه په کې بشپړ او پاخه شوي وي وریسې د ځوانۍ پړاو راځي چې دا پړاو د بوډاتوب پورې رسېږي چې توانونه بېرته مخ په کمېدو شي. د دې پړاونو د دوام وخت او موده د دنني یا بهرني علتونو له کبله تغیر خوړلې شي خو پیدا ایښتي یو له بل پسې

راځي. سربېره پر دې ماشوم په ډېر څه پوهېږي نسبت هغې ته چې ویلې یې شي. د بېلګې په توګه ماشوم د ګرځېدلو د پړاو په لومړي سر کې خپل نوم پېژني خو ویلې یې لا نه شي، چې دوه درې میاشتې وروسته یې بیا ویلې هم شي. ماشومان په لومړي سر کې په یو څپه یي یا دوه څپه یي اسانو وییو خبرې کوي او ځانته خپله ژبه لري او د سختو وییو څخه لږ څه کموي لکه د تندار پر ځای تندا وایي. پوهیال په لومړي سر کې خپل ځانته "پوه" او پتوال ته "پتو" خو دوه درې میاشتې وروسته پوهیال او پتوال سم ویلی شو.

ماشومان د لویانو د رول تقلید کوي او غواړي چې د هغوی په شان شي- په دې لړ کې د لویانو د ژبې تقلید هم کوي خو تل نه. لا د خاپوړو په پړاو کې د سړیتوب لومړنی پېدا ایښتي بنسټونه راښکارد کېږي د بېلګې په توګه پوهیال چې به یو شي ته ځېر شو نو بیا ترې پام بلې خوا اړول ګران کار و او هم چې کوم شی به یې په لاس کې نیولې و هغه به یې د بل شي په

بدل کې په اسانۍ لـه لاسه نـه ورکـاوه دا د ننـيز خويـه سړيتوب[۳] (Introverte Personality) نښه ده.
پتوال بيا برخلاف هر شي ته پام وي او هم په لاس کـې نيولی څيز په اسانۍ د بل شي په بدل کې ورکوي چې دا د بـهرنيز خويـه يـا ټولنـيز سـړيتوب (Extraverte Personality) نښه ده.
د ژبې د زده کړې لپاره د يو شمېر ساوالو جوړښتونو څه نـا څه وده ضروري ده- بيـا د سـاوالو جوړښتونـو د ودې سره پـه ګډه د چـاپېريـال د متقـابلې اغـيزې پـه بنسټ وده کوي.

[۳] د ننيز خويه او بهرنيز خويه سړيتوب د دې کتاب په بله برخه کې چې لاسي ليك او سړيتوب نومېږي روښانه شوی دی.

# پښتو لیک دود

د پښتو پخوانی لیك میخمري و چې د میخي لیك په نامه هم یادیږي. پروفیسر ډاکتر ګل جانان ظریف دوه نیم زره کاله پخوانی پښتو میخمري ډیبونه (کندل شوی لیك) را په ګوته کړی دی. ده په همدې نوم یو کتاب لیکلې دی چې په (۱۹۹۴ع) کال کې په پېښور کې چاپ شوی دی. د میخمري یا میخي لیك څخه مطلب هغه لیك دی چې د میخي څهرو په شان توري لري. ګل جانان ظریف لیکي چې "د هغه میخمري ډیبونو الفبا چې په پښتو پورې اړه لري تر اوسه د پېژندل شوو تورو شمېر یې ۳۶ ته رسېږي" (ظریف: ۱۹۹۴) دا لیك یو شمېر نوري نښې هم لري چې په لیکلو کې کارول کېږي.

د پښتو اوسنی لیك دود د عربي څخه مینځ ته راغلی او داسې بریښي چې پښتنې ټولنې کې د اسلام د مقدس دین د راتګ وروسته لومړی په جماعتونو کې لوی شوی دی. داچې پښتونخوا ته کله د اسلام

مقدس دین راغلي او کله پښتنو منلی دی په دی هکله قاضي عطاء الله خان چې دپښتنو تاریخ یې لیکلی دی وایي. کله چې خالد بن ولید چې د بني اسرائیلو د قوم یو لوی مشرو ایمان راوړ او مسلمان شو نو د غور پښتنو ته چې نسلي اړیکې یې ورسره لرل لیك راولیږه چې دوی هم مسلمانان شي. د غور د پښتنو یوه جرګه د قیس په مشرۍ مدینې منورې ته لاړه او د اسلام مقدس دین یې ومانه او حضرت محمد (ص) له خوا په قیس عربي نوم عبدالرشید کېښودل شو. کله چې دا جرګه بېرته راتله نو څو تنه عرب مبلغین یې هم ورسره ملګري کړل. کله چې"عبدالرشید د غور غرونو ته واپس راورسېده نو هغه د خپل قوم مشري او رهنمایي په داسې شان وکړه چې په لږه موده کې هغوی ټول مسلمانان شول. قیس عبدالرشید ته خالد (رض) خپله لور هم په نکاح کې ورکړه چې د هغې ښځه عبدالرشید ته خدای تعالی درې زامن ورکړل د ټولو د مشر ځوی نوم یې سربن، د دویم نوم یې بټن او د دریم نوم یې غرغشت

کښېنود. د قیس د دې درې واړو ځامنو دومره ډېر اولاد پیدا شو چې هر یو د یوې لویې قبیلې نیکه شو. "(قاضي عطاء الله، ۱۹۴۷) د پښتنو خیلونو اوسنۍ شجره نسب چې اتبار لري د دې نظر یې څخه اوبه اخلي. او د دې نظریې له مخې اسلام د حضرت محمد (ص) د ژوند په وخت کې د جګړې له لیارې نه بلکې د سولې او جرګې له لیارې د پښتني کلتور برخه ګرزیدلې او د پښتنو کلتوریې لاپسې بډای او غنې کړېدی او هم پاچیان (سیدان) کېدای شي چې همدغه عرب مبلغین و چې جرګې سره راغلي دي او اوس د پښتنو سره نه یوازې ژبني او کلتوري بلکې نسلي وحدت ګرزیدلي دي ځکه چې خپلوي یې ورسره کړې دي پښتني ټولنې ته د اسلام د راتګ په نښتون کې د پښتو د اوسني لیک دود چې د عربي تورو په بنسټ ولاړی دی عمر اټکل کېدلې شي. خو د عربي تورو سره که څه هم یو شمېر پښتو توري لکه ړ، ډ، ټ او داسې نور یو ځای شوي دي خو د پښتو په اوسني لیك دود کې د پښتو ټول غږونه نه راځي. د

دې علت دادی چې په عربي ژبه کې د حرکتونو شمېر
کم دی او په پښتو کې زيات دی. د بېلګې په توګه په
عربي ژبه کې پېښ، ځور، سکون او زېر دی خو پښتو
ژبه کې د پېښ او ځور تر مينځ، د سکون او ځور تر
مېنځ او د سکون او زېر تر مينځ يو بل حرکت شته
دی له دی کبله د پښتو په ليکلو کې ستونزې شته
دی. دا زموږ د ژبپوهانو دنده ده چې داستونزې له
منځه يوسي او د پښتو ليکدود بشپړ کړي چې د
پښتو ټول غږونه پکې راشي.

# پښتو د ژبې په توګه

پښتو یوه ډېره توانمنه ژبه ده د غږونو یا تورو شمېر یې حتی د نړۍ والو پرمختللو ژبو لکه انګلیسي او الماني په پرتله زیات دی. که څه هم تر اوسه پورې د پښتو ژبې ټولو ګړونو ته توري نه دي نیول شوي خو د هغه تورو شمېر چې اوس د پښتو په عربي لیکدود کې پکارول کېږي. ۴۶ ته رسېږي د پښتو په میخي لیکدود کې لکه څنګه چې پخوا مو یاده کړه ۳۷ توري تر اوسه معلوم شوي حال دا چې د انګلیسي ژبې د تورو شمېر ۲۶ او د جرمني (الماني) ژبې د تورو شمېر ۳۰ دی. په دې حساب د پښتو ژبې توان (ظرفیت) د انګلیسي او جرمني ژبو څخه زیات دی یعنې د ودې ډېر قابیلیت لري خو کار ورته نه دی شوی.

دوییو (لغتونو) او نومونو ټولګه یې د انګلیسي (انګرېزي) او جرمني (الماني) ژبو په پرتله ډېره کمه ده. دا ځکه چې انګلیسي (انګرېزي) او جرمني

(الماني) ژبو ته که څه هم توان (ظرفيت) يې د پښتو ژبې څخه کم دی، ډېر کار شوی دی او دوييو (لغتونو) پانګه يې زياته ده. لنډه داچې پښتو يوه ډېره توانمنه ژبه ده چې ډېر يې غټ دی او ډېر څه پکې ځايېږي. که چېرته موږ د ويي (لغت) سرچينه (مصدر) د دانو تخم وګڼو او په مصوره ژبه خبرې وکړوو نو د پښتو ژبې نه يوازې د وييو (لغتونو) تخم زيات دی بلکې د دغه تخم ونه يې هم غټه ده او ډېرې څانګې لري. مطلب دادی چې د ويي (لغت) د تخم د يوې دانې څخه ډېرې نوې ويي (لغتونه) او نومونه جوړيدلی شي.

د پښتو ژبې د ويي (لغتونو) د پانګې د پراختيا، ودې او سوچه کولو لپاره يو شمېر پښتنو ليکوالانو او ژبپوهانو هڅې پيل کړي دي په تېره بيا پوهاند ډوکتور مجاور احمد زيار او لطيف جان بابی او د پښتو ټولنې همکارانو په دې برخه کې د خپلو امکاناتو سره سم اوچت ګامونه اخستي دي. د دې هڅو پلار محمد ګل خان مومند دی چې په هغه کم

شمېره قامي مشرانو کې شمېرل کېږي چې د افغانستان په بېروکراسۍ کې د وزارت مقام ته د رسېدو سره سره يې خپلې ژبې او کلتور ته شا کړې نه ده. وزير محمدګل خان مومند ته پته وه چې ځينې پښتانه د افغانستان د حکومت د اغېزې له کبله په پښتو کې د فارسي ويي (لغتونو) کاروي سره د دې چې پخپله ژبه کې لري او حتی سوچ يې هم پردی شوی دی د چای د څښلو يا سکلو په ځای د چای خوړل وايي چې په فارسي ژبه کې پکارول کېږي او "چای خوردن" ورته وايي.

محمدګل خان مومند د پښتو ژبې ودې سوچه کولو ته ملا وتړله. پښتو ګرامر او ډېر نور کتابونه يې وليکل. دده د هاند (کوښښ) په اړ کې پښتو ټولنه په ۱۹۳۷ ع کال کې جوړه شوه (ښتين په محمد ګل خان مومند کې، ۱۹۹۵ ع) او يو شمېر نومونه لکه د شينوارو د " ده بالا" نوم د کلي نوم يې پښتو کړ او "هسکه مينه" و نومول شوه. همدغسې د معلم په ځای ښوونکی او مکتب پر ځای ښوونځی او

همدغسې نور په خلکو کې رواج شول. د پښتو ژبې د ودې او سوچه کولو د هلوځلو په لړ کې لاندو ټکو ته پاملرنه ضروري ده.

۱. که کومه نوې ویې (لغت) چې ضرورت ورته وي د پښتو د یوې ویې راوتلې شي نو پکار نه ده چې ترکیب یې د ډېرو ویو څخه جوړه شي.

۲. همدغسې نړۍ وال ویې لکه کمپیوټر چې په پښتو کې ورته مناسبه ویې نه پیدا کېږي پکار ده چې خپله ونیول شي او پښتو ژبې په قالب کې راوستل شي.

۳. سیمه ایزې (محلي) پښتو ویې (لغتونه) چې د ژبې د خاص ارخ پورې اړه لري بایده دي چې عامې شي او په دې توګه د معیاري ژبې برخه وګرزي چې ټول پښتانه پرې وپوهېږي.

## پښتو د پښتونولۍ د برخې په توګه

پښتو یوازې د پښتنو ژبه نه ده بلکې د پښتنو د یو لړ صفتونو یا خویونو ټولګه ده چې د پښتونولۍ برخه جوړه وي. مخکې له دې څخه چې پر دې صفتونو رڼا واچوو خپله پښتونولۍ ته لنډه کتنه کوو.

### پښتونولي

پښتونولي د جرګو یو اولسي سیستم (نظام) دی چې ډیموکراتیک (جمهوري) خوی لري، جرګه کېدای شي د کورنۍ، کلي، منطقې، قبیلې او قام په سویه منځ ته راشي د ټول قام په سویه سره جرګې ته لویه جرګه هم وایي، خو دا جرګې دایمي نه دي موقتي (عرضي) غیر مرکزي او خپلواکه بڼه لري په هره جرګه کې په خپله سویه سره لکه د سټیټ (دولت، ریاست) په شان مقننه، عدلیه او اجرئیه قوه راغونډه شوې وي له دې کبله خپلو پرېکړو ته بې له بهرنۍ مرستې څخه د عمل جامې اغوستلې شي د پرېکړو د عملي کولو

توان د جرګې د ګډون کوونکو د نفوذ ساحه کوچنۍ
وي او خپله پرېکړه عملي کولی نه شي نو بیا په
جرګه کې نور داسې کسان زیاتېږي چې د نفوذ ساحه
یې د پرېکړو د عملي کولو لپاره بسیا وکړي.
د پښتنو جرګې د هر چا له خوا راغوښتل کېدلې شي
او ډېر وخت د کمزورې له خوا او کله کله د پېښو د
ضرورت له کبله بې له دې چې څوك يې را وغواړي
منځ ته راځي او خلق د جرګې لپاره پخپله راټولېږي.
د جرګې د ګډون کونکو څرنګوالي او شمېر د پېښې
او لانجې د څرنګوالي پورې اړه لري. جرګه ټولنیزې،
سیاسي او حقوقي پرېکړې کولې شي، په جرګه کې
هېڅکله رايې نه اخستل کېږي په هغه موضوع
باندې چې جرګه ورته رابلل شوې وي تر هغو خبرې
او بحث کېږي چې يوې موافقې ته د ټولو په خوښه و
رسېږي او بیا پرې د دوعا لاس پورته شي. کله نا کله
جرګه په لانجه کې د برخه والو څخه واك اخلي او بیا
د هر اړخ سره بېلې بېلې خبرې کوي، دا خبرې تر
هغې دوام لري چې ټولو خواوته قناعت ورکړ شي او

روغـې تـه راضي شي. د جرګې راغوښتلو او جرګې جوړېدو سر بېره جـرګه لـېږل کـېږي هـم. پښتانـه د جرګې ډېر مـخ او خـاطر کـوي او د ډيـر څه نـه ورتـه تېرېږي.

پښتونولي د پښتنو ليکوالانو سر بېره د نړۍ د يـو شمېر ليکوالانو پام هم ځانته را اړولی دی او دخپلې څېړنې موضوع يې ګرزولې ده. له دی کبله يو شمېر اروپايي پوهان خبروته پرېږدو او بيا پرې لنډه تبصره کوو.

ماکس کليم بورګ (Max Klimburg) اطريشي پوهـان د پښتونولۍ د لاندی د پښتنو يو عنعنوي يا حقوقي سيستم بـاندی پوهـېږي چې تـر ټولـو سـتره قضـا (عدالت) يې جرګه ده او ليکـې چې "جـرګه د ازادو ډيموکراتيکو کړو وړو سره سم نه مشر لري او نه د غونډې په وخت کې هر تن له پاره ټاکلي ځايونه وي. سړی په ناپېلي ځای کې د هم غاړو کسانو په ډله کې ناست وي او هر څوك هر کله که وغواړي کولې شي چې پـاڅېږي خـبرې وکـړي او لاړشـي. د جـرګې د

پرېکړو لپاره د رایو ډیروالی شرط نه دی هېڅ کله رایې نه اخستل کېږي بلکه د مخالفو کسانو نشتوالی ارزښت لري، د جرګې د پرېکړو عملي کونه د جرګې د ګډون کونکو مهمه ټولینزه دنده ده."
همدغسې ویلي کروزی (Willy (Max Klimburg, 1968) Krause,1972) او ځنی نور بهرني لیکوالان پښتونولي یو حقوقي دود ګڼي.

د پورتنیو لیکوالانو دا نظریه چې پښتونولي د پښتنو یوازې حقوقي دود یا سیستم دی موږ ته بشپړه نه برېښي ځکه جرګه چې د پښتونولی تر ټولو ستر مقام دی یوازې حقوقي پرېکړې نه کوي بلکه ټولنیزې او سیاسي پرېکړې هم کوي. د دې خبرې ښه بېلګه داده چې پخپله احمدشاه بابا په (۱۷۴۷ع) جرګې باچا کړ له دې کبله پښتونولي یوازې یو حقوقي سیستم نه شي ګڼل کېدلی بلکې ټولنیز او سیاسي سیستم هم دی د کلیم بورک (Klimburg) داخبره سمه ده چې د پښتنو جرګه ډیموکراتیک (جمهوري) خوی لري او هر څوک په کې په ازادانه

توګه خبرې کولې شي او خپله نظريه څرګندولې شي خو داچې وايي چې جرګه مشر نه لري په دې هکله پکار ده چې ووايو چې جرګه مشران لري خو دغه مشران د ووټونو (رايو) په واسطه ټاکل شوي نه دي بلکې عنعنوي منل شوي کسان دي د بېلګې په توګه په يوه جرګه کې چې يو قومي مشر ناست وي نو سړی ويلې شي چې دغه جرګه د هغه د مشرۍ لاندې وشوه. ځنې نور پوهان وايي چې د جرګې سيستم چې ډيموکراتيك سيستم دی په پخوانيو قبيلوي ټولنو کې غېرې طبقاتي موجود وو خو کله چې طبقاتي ټولنې او سټيټ منځ ته راغلی نو دا سيستم هم ختم شو. په دې نښتون کې انګلس (Engel) د ايرو کيزن (Irokesen) د سينيکس (Senekes) قبيلې ته ګوته نيسي دغه قبيله د حيواناتو د نومونو په بنسټ په اتو خېلونو ويشل شوې وه چې هر خېل يوه جرګه لرله چې بالغو نرانو او ښځو په کې د رايو مساوي حق لرلو، دغې جرګې د سولې او جګړې مشران ټاکلې او لېرې کولې شوو.

که ځیر شو نو وبه وینو چې د سینکاس (Senekas) د
قبیلې جرګه چې د طبقاتي ټولنې په منځ ته راتګ
سره له منځه لاړه د پښتنو د جرګې د موجوده بڼې
سره توپیر لري او هغه دا دی چې د سینیکاس
(Senekas) قبیلې په جرګو کې د پښتنو د جرګو پر
خلاف رایې اخستل کیدلې او دایمي مرکزي بڼه یې
لرله او کټ مټ ستیټ (State) ته ورته وې. کله چې په
طبقاتي ټولنه کې په جګه سویه ستیټ منځ ته راغی
نو دغه جرګې یې هم له منځه یوړې ځکه چې په جګه
او غوره سویه تنظیم په ټیټه سویه سره د هماغه شان
تنظیم ځای نیسي او له مینځه یې وړي، خو د پښتنو
جرګې د ستیټ یا هیواد په برخلاف غیرې مرکزي
خپلواکې او موقتي بڼه لري او یو بشپړ اولسي
ډیموکراتیک (جمهوري) سیستم دی چې د پښتني
ټولني ټولې ربړې حلولې شي. او له دې کبله یې
ستیټ ځای نه شي نیولې بلکې برخلاف لویه جرګه
چې د قام د ارادې ښکارندویه ده ستیټ جوړولې
شي. هیڅکله ستیټ او یا پارلیمنټ چې د ستیټ یوه

برخه ده او یوه دایمي جرګه ده د لوی جرګې ځای
نیولې نه شي. پښتونولي د پښتنو قامي یا اولسي
نظام دی چې د یوه کول څخه بل کول ته لېږدول
کېږي د پښتونولۍ د زده کړی ځایونه کورنۍ،
حجرې یا دېره او پښتنې ټولنه ده. د پښتونولۍ زده
کړه د ځېږېدو راهسې په کورنۍ کې پیل کېږي او
ټول عمر دوام لري. مشران او سپین ږیري چې د
پښتونولۍ په زده کړه کې تر ټوټلو جګ پړاو ته
رسېدلي وي د پښتونولۍ ساتندویه دي. پښتانه د
پښتونولۍ سره کلك تړون لري خپلې د ژوند چارې د
جرګو له لبارې سموي. پښتونولي ځان ژغورونکی
خوی لري او د بهر نه په ځان کې ګوتې وهنه نه مني.
د دې خبرې علت د پښتونولۍ په بشپړوالي
(مکملتوب) کې پروت دی چې د پښتنو د ژوند ټولې
ربړې او چارې پخپله سمبالولې شي او د بهر مرستې
ته اړتیا نه لري.

**د پښتونولۍ فلسفي بنسټ:** پښتونولي پوخ فلسفي
بنسټ لري چې په دې لاندې لړونو ولاړ دی.

۱. پښتو: په پښتني ټولنه کې د پښتو ویلو یا لیکلو چې د ژبې پورې اړه لري او د پښتو کولو تر منځ توپیر کېږي چې د پښتونولۍ پورې اړه لري او د یو شمېر صفتونو ټولګه ده لکه پت، ښېګړه، توره، وفا، وروروَلي، ننګ، میلمه پالنه، میړانه، غیرت، انصاف، پنا ورکول، د روغ نا روغ پوښتنه او په ښه بده کې ګډون، د ژوند په چارو کې د مشرانو او دوستانو سره سلا مشوره او داسې نور. دا صفتونه هر پښتون که موږ وي که غریب بایده دي چې ویې لري د پښتنو بابا خوشحال خان خټک هم همدا خبره تائیدوي چې وایي:

درست پښتون د قندهاره تر اټکه
سره یو د ننګ په کار پټ او اشکار

(د خوشحال خان ارمغان، بې کاله)

پښتو د پښتنو ګډه ښکلا ده ننګ چې د پښتو یوه برخه ده د هر پښتون ښایست دی او هیڅ پښتون په دې ښایست

کې لـه بل نـه کم نـه دی. د پښتونولـی ډیموکراتیـک (جمهوري) خوی یا خاصیت په پښتو کې یعنې په دې صفتونـو کـې پـروت دی، چـې ټول پښتانـه پـه کـې مساوي دي.

۲) **دودونه یـا نرخونـه:** دودونـه یا نرخونـه یو ډول اولسي قانون دی چې د وخت په اوږدو کـې د جرګو د پرېکړو په نتیجه کې مینځ تـه راغلي وي. کله چې د یوې جرګې پرېکړه د بلې جرګې لـه خوا ومنل شي او یا مختلفې جرګې په یوه لانجه کې په ناپیلې تـوګه یو شان ته پرېکړه وکړي نو د وخت پـه تېریدلـو سره دود (دستور) نرخ ګرځي. د پښتنو دودونو شمېر ډېر زیات دی چې ټول یې ځان ته کتاب جوړوي. مونـږ یـې دلتـه یوازې یو شمېر مهم را په ګوته کوو.

**سوله او روغه:** سوله دڅه مودې لپـاره ددواړو خـواو ترمینځ د جګړې بندیز ته وایي چـې د جرګې لـه خوا لګول کیـږي او تاکلي ناغــه (جریمـه ) پـرې ایـښودل کیـږي چې کوم اړخ یې مات کړي د هغه څخه اخستل کیـږي . روغه بیـا دایمـي جوړې او پخلاینې تـه وایـي

ټولې پخوانۍ لانجې حل او وروروليي بيرته مينځ ته راشي.

**نتواتې:** کله چې سړی ځان پړ ګڼي نو مقابل اړخ ته ننواتې ورځي او بښنه غواړي. د ننواتې منل د پښتنو يو غوره صفت دی او د مړي له بدو هم تيرېږي. په ننواتې کې زيات پښتانه دځان سره پسونه هم بيايي او بيا يې هلته حلالوي او يا د ځان سره قران شريف او ښځې بيايي ځکه چې پښتانه د ښځو پړوني ته په درنه سترګه ګوري او خامخايې بښنه مني.

**برمته:** که څوك په يوه کلي کې په چا پور لري او نه يې ورکوي نو د پور خاوند د پوروړي د کلي کسان او يا مال نيسي. تر هغو يې نه ورکوي چې د ده پور يې نه وي ورکړی ډيرې برمتې بيا د جرګو او مرکو له لياري فيصله کيږي.

**ټره او ټړون:-** کله چې يو بهرنی دښمن په يوځاي يرغل کوي نو دلته ټول اولس راټوليږي پخپل مينځ

کې یوتړون اوپریکړه کوي او په ګډه د یرغل مخه نیسي.

**چیغه:-** کله چې په یوه کلي کې په چا دښمن داړه وکړي نو د کلي ټول خلك د وسلو سره راوزي او دباندیني خطر مخه نیسي.

**اشر( بګړه ):-** کله چې د یوه تن له وسه د لنډ وخت دروند کار لکه غوبل یا کوهی کندل پوره نه وي نو د کلي خلك د مرستي لپاره راغواړي هغوی ورسره مرسته کوي او دې به یې میلمه پالنه کوي.

**ټوله** (ښبنه، ښندنه)**:-** که چا ته د کوم مصیبت له کبله تاوان ورسیږي نو د کلي خلك اوخپلوان یې ورته پیسې راټولوي چې خپل کار پرې بیرته روان کړي.

**تیګه:-** حدبندي او بنسټ ایښودلو ته وایې جرګه دواړو خواو ته خپل حد معلوموي چې ترې نه به اوړي او د تیګې په ماتولو ناغه (جریمه ) لګوي.

۳ ) **پیغور او بدل:-** د پیغور په واسطه د پښتنو پښتو (صفتونه) په پوښتنه کې اچول کیږي او پښتانه

د بدل اخستلو ته ملا تړي. بدل ډیر ډولونه (قسمونه) لري کله کله د روغې په حالت کې د مړي په بدل کې ښځې ورکول کیږي چې ((سوره)) ورته وایې او خپلوي مینځ ته راځي او یا د قاتل له پرې (ډلي) له خوا یو تن ورته په ګوته کیږي چې ده ستاسو کس وژلی دی او((کشنده)) ورکول کیږي چې همدا وژلی شي او بدل به یې نه اخستل کیږي ((کشنده )) بیاپېټ ګرځي او یا چیرته بل وطن ته تښتي او هلته خپل سر په امن کې کوي . ( پرتله کړئ: پښتني دودونه ، ۱۹۵۷، ربښتین، ۱۹۱۴)

# د پښتنو نسل او نسب

د پښتنو د نسل په هکله درې متضادې نظريې شته دی چې لنډه کتنه ورته کيږي.

**۱) د پښتنو د بني اسرائيلو د نسل نظريه:-** د دې نظريې له مخې پښتانه بني اسرئيل دي او د هغه دولس قبيلو څخه دي چې د بابل نه راوتلي دي او په خاصه توګه د خالد بن وليد چې د اسرائيلو سردار و او په غور کې د اسيدونکو بني اسرائيلو مشر قيس ((عبدالرشيد)) ته يې لور ورکړې وه اولاد دی. د پښتنو اوسنی شجره نسب هم قيس عبدالر شيد ته رسول کيږ ي. (قاضي عطاالله خان ، ۱۹۴۷) دا نظريه په تاريخي طريقو (ميتودو) ولاړه ده. او د نعمت الله هروي چې د مغلو د پاچا جهانګير په دربار کې پيښن ليکوونکی و په مخزن افغاني نومي کتاب او ځينو نورو حواله ورکول کيږ ي. قاضي عطا الله خان د دې نظريې لنډيز په دې تورو کوي د پښتنو مورخينو په خيال کې پښتانه بني اسرئيل دي. د

پښتنو عام عادتونه، شکل شباهب او طرز معاشرت هم د بني اسرائيلو په شان دی. او دا وخت هم د پښتنو په ملك کې د ځينو کلو او غرونو نومونه د بني اسرائيلو د کلو او غرونو د نومونو په شان دي. لکه خيبر چې د عربو په ملك کې د يهوديانو د استوګنې يو مشهور ځای و، د پښتنو په وطن کې هم د افريدو او د شينوارو وغيره و د يوې علاقې نوم دی. صدوم چې د قوم يوسفزايي د يوې علاقې نوم دی. هم په دې نوم د بني اسرائيلو يو ښار مشهور و دغه شان لفظ ((جليل )) او ((جلاله)) د کليلې نه راوتي دي چې د فلسطين د يومشهور جهيل نوم دی. دغه شان کوه سليما ن، د سليمان عليه السلام چې د يهوديانو لوی بادشاه او پيغمبر و، په نوم باندې مشهور دی، عربو په ابتدا کې پښتنو ته ((سليماني)) ويل، پښتنو د خپل ځان له پاره هميشه پښتنون لفظ استعمال کړی دی. (قاضي عطاالله خان ، ۱۹۴۷) د پښتنو پخوانيو تاريخ پوهانو د نعمت الله هروي نظريه خپله کړې وه سيدبهادر شاه ظفر کاکا خيل چې د دې نظريې په

نقادانو کې شمیرل کیږي هم دا خبره مني او لیکي چې ((دې نظریې د درې، درې نیم سوو کالو راهسې په پښتنو کې د یوې منلې شوې عقیدې حیثیت اختیار کړی، او د نن نه څه ځلو یښت پنځوس کاله اګاهو ټول پښتانه د افغا نستان استوګن وو او که د پاکستان، هم په دې نظریه متفق و. اوس هم په پښتنون اولس د عمومي کلیې په ډول دا خبره مشهوره ده چې پښتا نه د خالد بابا اولاد دی. (ظفر کاکا خیل ، ۱۹۶۵ ع ) په اوسني وخت کې د رویتر (Reuter) دخبر رسولو د اژانس د یوه خبر له مخې چې د دوه زرم عیسوي کال د اګست د میاشتې په ۲۱ نیټه دمیګن ګولډن (Megan Goldin) له خوا خپور شوی دی؛ ویل شوي دي چې د اسرائیلو له اړخه په یوه څېړنه کې چې د اسرائیلو د قبیلو په باره کې چې ۲۷۰۰ کاله دمخه ورکې شوې دي رابي الیاهو اویخل (Rabbieliyahu Avichail) له خوا شوې ده را په ګوته شوې ده چې پښتانه په افغانستان او پاکستان کې د بني اسرائیلو ورکې شوې قبیلې

دي (پرتله کړئ د دې کتاب په پای کې د رویتر (Reuter) خبر).

**د پښتنو داریایي نسل نظریه:-** دا نظریه د ژبپوهنې څخه اوبه اخلي. په ژبپوهنه کې د ژبې او نسل تر مینځ دا اړیکي په دې سوچ ولاړ دي چې د هر نسل خلك لومړی په یو ځای کې استوګن وي چې یوه ژبه لري کله چې نورو ځایونو ته لاړ شي نو بیلې بیلې ژبې مینځ ته راځي چې د لومړنی ژبې خویونه (خصوصیات) پکښې یوه اندازه پاتي کیږي. لدې کبله ځیني ژبپوهان وایې چې هغه ژبې چې یو بل ته ورته والی او مشابهت لري د یوه نسل د ژبې پورې اړه لري. دځینو ژبپوهانو په خیال اریا په نامه یو نسل په باختر کې استوګن و چې یوه ژبه یې لرله چې د ((ریك )) په نامه یادیده. دا ژبه اوس بیخي ورکه ده. د اریاو څه برخه باختر کې پاتې شوه. یوه برخه د ایران او هند په لور، بله برخه یې د یورپ په لور لاړه (ظفر کاکا خیل ، ۱۹۶۵). چې دوه ژبې مینځ ته راغلې چې یوه د ((سانسکرت)) او بله د ((زند)) په

نامه یادیده. پدې دوارو ژبو کې مذهبي کتابونه لیکل شوي دي او ـ زند ـ هغه ژبه ده چې پکښې د پارسیانو مقدس کتاب ـ اوستا ـ لیکلی شوی دی (قاضي عطاالله خان ، ۱۹۴۷) په همدې بنیاد ځینې اروپایې پوهانو اریایي ژبې په دوو ډلو ویشي چې یوې ته یې د ژبې هندو جرمني (Indo German) ا و بلې ته یې د ژبې ایراني (Irani) ډله وایې ځینې ژبپوهان د پښتو سره د "وید" او " اوستا" د کتابونو د ژبو دټکو د پرتلې (مقا یسې) په بنسټ وایي چې دځینو ټکو یې د پښتو سره ورته والی او مشابهت شته دی. له دې کبله پښتو هم د اریایي ژبو په ډله کې ده او پښتانه د اریا د نسل څخه دي. ځینې یې "د اوستا" سره په مشابهتونو زور اچوي او پښتو زړه پاړسوګنې ځیني یې بیا د "وید" سره په مشابهتونو او ورته والي زور اچوي او" اندو ژرمن " ژبو د ډلې پورې یې تړي اوځیني یې د"کوردي" ژبې سره نږدې والی بنایي چې "د اندو ژرمن" د ژبو په ډله کې شمیرل کیږي. ځیني نور بیا وایي "چې پښتو ژبه یوه مستقله

ژبه ده او د ډيرې مودې نه د "سانسکرټ" او "زند" سره په ګاونډ او ژور تعلق کې پاتې ده " ( ظفر کاکا خيل ۱۹۶۵ ) د ژبپوهنې د دې لارې ( ميتود ) چې د ژبو تر مينځ د مشابهتونو په بنياد د نسل پيژند ګلوې کوي کمزورې پدې کې پرته ده چې د ورته والي او مشابهتونو په بنياد قضاوتونه تل سم نه وي. همدا خبره د هغه ليکوالانو له پاره اعتبار لري چې وايي په پښتنو کې د يونانيانو، مغلو او ترکانو نښې دي او د هغوې سره مشابهت لري يا يې د هغوى پورې تړلي او يا يې ګډوله ګڼي. (ظفر کاکا خيل، ۱۹۶۵ ) داسې سوچونه پوهنيز بنسټ نه لري او کيدى شي د دې واقعيت څخه يې اوبه اخستې وي چې پښتانه د لارې په سر پراته دي او ډير يرغلګر پدې لاره تير شوي دي او دلته به پاتې شوي وي.

**د پښتنو د مستقل نسل نظريه:-** ځينې ليکوالان لکه چې د ژبې په برخه کې هم را په ګوته شوه، پښتانه دکوم بل نسل پورې تړلي نه ګڼي او ځان ته مستقل نسل يې ګڼي چې د لومړي سر راهسې د غور

پــه غرونــو کــې اوســيږي. ( قــاضي عطــاالله خــان ، ۱۹۴۷ ) د پښتنو د نسل په هکله د نظريو ډيروالی د دې هڅې نه خالي نه بريښي چې د پښتنو د نسل او نسب پيژند تورتم شي. د نظريو په مينځ ته راتګ کې پوهنيز دود دا دی چې سړی پخواني نظريه چې ديوځه يا شي په باره کې وي غلطه په ثبوت رسوي، او بيا خپله متبادله نظريه وړاندې کوي يا يې سمه په ثبوت رسوي او دخپلې څيړنې بنسټ يې ګرځوي. دلته پوهانو اوڅيړونکو پوهنيز دود ته پاملرنه نه ده کړې او بيلې بيلې نظريې يې يو د بل څخه په ناپيلې توګه وړاندې کړي دي، صرف ظفر کاکا خيل د دې هڅه کړې ده چې پښتنو د بني اسرائيلو د نسل په نظريه د تورات او اسلامي تاريخ په حواله سره انتقاد وکړي. خو دا يې نه دي ويلي چې تورات يې په کومه ژبه لوستلی او هم يې کومه متبادله سمه نظريه نه ده وړاندې کړې چې د پښتنو د نسل پوښتنه روښانه کړي او د پښتنو د بني اسرائيلو د نسل نظريه په بنسټي توګه غلطه ثبوت کړي. په هر ډول سره مونږ

په دې هکله زيات نه غږيږو او دا خبره خپله تاريخ پوهانو او ژبپوهانو ته پريږدو چې سره کيني د پښتنو د نسل خبره سپينه کړي د قام حق ادا کړي اوخپله زمه واري پوره کړي.

# پښتونولي او اسلام

د هغه وخت راهسې چې پښتانه مسلمانان شوي دي او اسلام د پښتونولۍ سره يو ځای شوی دی نو د وخت په اوږدو کې يو په بل باندې اغېزه کړې يو بل يې بشپړ کړي دي؛ اسلام پښتو او پښتو اسلام ګڼل کېږي. ګرځېدلي دي بې ايمانه بې غيرته

پښتونولي او اسلام د پښتني ټولني دوه پښې او بنسټ دی. توپير يې د پښتنو په ژوند کې د ټولنيز کېدلو د لړۍ په نښتون کې کيدلی شي. د ټولنيز کېدلو لړۍ چې د زده کړې په بنسټ ولاړه ده؛ دوه برخې لري چې يوې ته يې لومړنۍ ټولنيز کيدنه (Primary Socialisation) او بلې يې دويمه ټولنيز کيدنه (Secondary Socialisation) نوميږي. دا هره برخه بيا ډير پراونه لري، لومړنۍ ټولنيز کيدنه له زيږيدوځخه وروسته سمدستي پيل کيږي او تر هغو دوام لري چې ماشوم ښوونځي ته د تګ شي. دويمه ټولنيز کيدنه يې پاتې برخه په غيږ کې نيسي. پښتونولي د لومړۍ او دويمې ټولنيز کيدنې پورې

اړه لري او اسلام په دويمه ټولنيز کيدني پورې. د دې علت د اسلامي مکلفيت په اصولو کې پروت دی چې ماشوم يې تر بلوغه پورې نه لري. هغه ارزښتونه، خوی او خاصيتونه چې انسان يې د لومړۍ ټولنيزکيدنې په ترڅ کې خپلوي د دويمې ټولنيزکيدنې څخه غښتلي دي. همدا علت دی کله چې د دوه ارزښتونو تر مينځ تضاد راشي نو د لومړنی ټولنيز کيدنې ارزښت ته امتياز ور کول کيږي.

# ژبه او قام یا اولس

ژبه د قام د ژبې په منبع ته راتگ او وده کې مهم رول لوبوي. د ژبې په بنسټ قامونه یو له بل څخه بیلیږي او توپیر یې کیږي. د ژبې پواسطه قامونه پیژندل کیږي او د قامي پیژند (قامي تشخص) نښه ده. باچا خان چې هره خبره یې د کاڼي کرښه ده په دې نښتون (ارتباط) کې ویلي دي چې "د یوه قام ژبه چې ورکه شي هغه قام ورك شي" او قامي پیژند یې ختم شي. همدا خبره یو تن افریقایي لیکوال دانیل میپن (Daniel Mepin) کوي چې د ۱۷ کلونو راهسې په جرمني کې د کامرون (Kamerun) د سفارت د کلتوري څانگې مشر و. ده خپل کتابونه په جرمني ژبه چې د خپلې دندې په وخت کې یې زده کړې وه، لیکلي دي. په کامرون (Kamerun) کې فرانسوي او انگلیسي دواړه رسمي ژبې دي او کومه خپله ژبه یې نشته دی. (Mepin) وایې چې " زه پدې تینگ باور لرم چې کله چې د یوې ډلې یا قوم ژبه مړه شي نو قام مړ کیږي. هغه قام نور بیا موجودیت نه لري ځکه چې

ژبه د پیژند (Identitat) مهمه برخه ده. که چیر ته په کامرون (Kamerun) کې دژبې یوه ډله یوازې سل تنه ولري نوپکار دي چي سرى دې ټولې هڅې وکړي چې ژبه یې وژغورل شي او که نه نو بیا د اولس د دې کوچنۍ برخې پیژند هم له مینځه ځي" (Mepinn Jeppeser, 2000). هر څومره چې یو قام پرمختللى وي هغومره یې ژبه هم پرمختللې وي په دې نښتون (ارتباط) کې قام یا اولس ته ځغلند ه کتنه کیږي.

**قام یا اولس:** په ځینو سیاسي ادبیاتو کې اولس د ټولنې هغه برخې ته وایې چې په پیداور (تولید) کې سیده برخه ولري. خو په نړۍ والو سیاسي ادبیاتو کې قوم یا قام (Nation) او د اولس (Folk) لفظونه په یوه مانا سره کارول کیږي. مونږ هم دا دواړه لفظونه په یوه مانا سره کاروو او د قام یا اولس دپیژند ګلوۍ لپاره مختلفې نظریې نه راغونډوو بلکې د محمد افضل خان (خان لالا) د قام یا اولس د مینځ ته راتګ په راسپړیدنه (تحلیل) بسیاکوو. محمد افضل خان (خان لالا) د قامونو مینځ ته راتګ

راسپړي (تحليلوي) او د قام د جوړيدلو پيل په يوه
جغرافيايي محدوده کې ويني او وايې: چې د ځمکې
په سر مختلف پيدايښتي ( قدرتي، فطري وحدتونه
شته دي او زياتوي چې "د فطرت غوښتنې د
جغرافيايي وحدت پورې محدودې نه دي: خبره نوره
هم په مخه ځي د جغرافيايي وحدت د ځمکې د
جوړښت او نوو ډيرو عواملو په اشتراك عمل؛ يوه
خاصه ژبه او کلتور وجود مومي. دغه ژبه او دغه
کلتور په ډيره اوږده موده کې د هيواد جغرافيايي
خدوخال نه خپل وجود پيدا کوي. شريك کلتور خلق
راغونډ کړي. غونډه؛ ناسته پاسته، دود، دستور پيدا
کوي. داسې ورو ورو په غير شعوري ډول يو کلتوري
وحدت پيداشي. چې کله دغه کلتوري وحدت په
جغرافيايي وحدت پورې خپل اړيکي مضبوط کړي
خبره نوره هم په مخه لاړه شي، فطرت په دغه
جغرافيايي وحدت کې د اوسيدونکو د ټولو اړتياو
بندوبست کوي. او د پيداوارو منابع د اولس له
ضروورياتو سره سمې موجودې وي. د دغه منابعو

ادراك اوضروريات چې سره يو شي نو اقتصاد مينځ ته راوړي. د قامي او انفرادي شتمنيو تصور پيدا شي. په ټولنه کې اقتصاد خپلې جرړې مضبوطې کړي، داسې جغرافيايي وحدت، يو کلتوري او اقتصادي وحدت شي. هر کله چې د شتمنيو د ملك تصور پوخ شي او شعور وده وکړي: نو د درې اړخيزي وحدت د ساتنې، دفاع او انتظام اړتيا، سياست مينځ ته راوړي. درې اړخيزى وحدت چې کله سياسي وحدت بيا مومي نو د يو قام د تشکيل عمل سر ته ورسيږي. داسې ګويا قام هغه دى چې په يو جغرافيايي، کلتوري، اقتصادي او سياسي وحدت کې پيرلي شوى وي." ( محمدافضل خان، ۱۹۹۴). پدې راسپړيدنه (Analyse) کې نه يوازې د قام يا اولس مينځ ته راتګ بلکې د قامي ودې ټو ل پړاوونه او اړخونه را په ګوته شوي دي او د بشپړ او پرمختللي قام يا اولس تصوير دى.

او په دې توګه په نړۍ وال قانون د قامونو يا اولسونو د خپلواکۍ (Self Determination) د حق فلسفه او

بنیاد هم روښانه کیدلی شي. د نړۍ وال قانون یا حقوقو له مخې قامونه یا اولسونه د دې حق لري چې د خپل ژوند چارې که اقتصادي، که پوځي که پوهنیزې یا نورې وي خپله سمبال کړي. سیاسي وحدت د حکومت په څهره کې راڅر ګندیږي چې دحاکمیت یو ټاکلی جغرافیایي محدوده لري چې د ملك یا هیواد په نامه یادیږي. په یوه ټاکلي جغرافیایي محدوده یعنې ملك یا هیواد کې د حاکمیت نظام ته سټیټ (دولت یا ریاست) وایي. د حاکمیت دا نظامونه د ځواك د سرچینې له مخې توپیر پیداکوي. د ډیموکراتیکو (جهوري، ولسولیزو) نظامونو د ځواك سرچینه اولس یا قام دی چې د قام یا اولس د ټاکل شو وکیلانو یا نماینده ګانو څخه د جوړې شوې جرګې چې د اولسي یا قامي جرګې د (پارلما ن یا اسمبلې) په نامه یادیږي په وجود کې اغیزه کو ي. د اولسي یا قامي جرګې له غړو څخه حکومت مینځ ته راځي. غیرې ډیموکراتیك نظامونه نورې مختلفې سرچینې لري چې دلته زمونږ د بحث

موضوع نه ده. که چیرته مونږ پښتني ټولنې ته نظر واچوو او لیرې لاړ نه شو نو و به وینو چې د احمدشاه بابا (۱۷۲۲ _ ۱۷۷۲ ع) په وخت کې د پښتنو قامي وحدت بشپړ و او ټول په یوه سیاسي نظام، ستیټ یا ریاست (دولت) کې راټول و چې په ۱۷۴۷ ع کال کې جوړ شوی او پوله یې د هند د نیمې و چې د غټې برخې راتاو شوې چې د احمدشاه دوراني د امپراطورۍ په نامه یادیده (پرتله کړی هغه وخت نقشې چې د دې کتا ب په پای کې لیدل کیږي).

افغان او پټا ن هم د پښتنو نومونه دي چې د بهرنیانو له خوا ورته ویل شوي دي. (افغان د فارسیانو له خوا او پټهان د انګریزانو او هندوانو له خوا). په دې هکله قاضي عطاالله خان لیکي چې "مستندو تاریخونو کې لفظ (افغان) د پښتنو د قوم لپاره اول ځلې دسطان ابوسعیدمرزا (۱۳۱۶ سنه) په زمانه کې مورخینو استعمال کړی دی. او عام طور باندې دا لفظ د پښتنو لپاره د شاه عباس اعظم (چې د ایران

یو لوی بادشاه په ۱۵۸۷ سنه کې تیر شوی دی) په زمانه کې استعمال شوی دی" (قا ضي عطا الله خان ۱۹۴۷). د خان لالا محمد افضل خان د وینا له مخې "پښتون اصل او نور نومونه رنګونه دي " ګنډا سنګ (Ganda Singh) لیکي چې احمدشاه بابا " ټولې پښتو ویونکې قبیلې سره راټولې او حتا د ایماقو او بلوڅو زیربېدلي پښتانه یې دخپل نوي دولت په بیلابیلو ولایتونو کې میشته کړل." (ګنډا سنګ، ۱۹۸۷) پښتون اولس تل خپل پیدا ښتي جغرافیایي وحدت (وطن ، ټاټوبی) ته پښتونخوا او خپل ځان ته پښتون ویلي دي د دې خبرې ګواه خپله احمد شاه بابا دی چې کله یې ډهلی ونیو نو بیا یې دا شعر ووایه:

د ډهلي تخت هیرومه چې را یاد کړم
زما د ښکلې پښتونخوا د غرو سرونه

خوشحال خان بابا هم وایي:

نوره واړه پښتونخوا په ځای پرته ده
یو دا زه دې زمانې پکې منصور کړم

( ارمغان خوشحال، بې کاله) لنډه دا چې پښتانه بشپړ قامي وحدت و او په يوه ستيټ ( رياست، دولت) کې را ټول وخو بيا وروسته په ۱۸۹۳ع د ښيکلاکي مناسباتو په لړ کې پښتانه په برخو وويشل شو چې اوس په دوه ستيټونو (هيوادونو يا ملکونو) کې چې افغانستان او پاکستان دي اوسيږي خو د پښتنو د دې دواړو برخو تر مينځ قامي اړيکي نه دي شکيدلي دا ځکه چې پښتانه د نړۍ په لرغونو قامونو کې شمېرل کيږي چې اړيکې يې دخپل پيدا ايښتي ( فطري، قدرتي) جغرافيايي محدودې (وطن) او خپل کلتور (پښتونولۍ) سره د پيړيو محصول دی چې ډير غښتلي او نه شليدونکي خوي لري.

د پښتنو دا قامي اړيکې دواړو هيوادونو د ګډ کار بنسټ ګرځېدلی شي.

## د پښتنو د قامي وحدت د بیا بشپړتیا نظریه

دپښتنو د قامي وحدت د بیا بشپړتیا د نظریې مهندس باچا خان ( ۱۹۸۸ _ ۱۸۹۰ ع ) دی. باچا خان دپښتنو د قامي وحدت د بیا بشپړتیا دلپاره د سولې (عدم تشدد) لاره غوره کړه او خپله مبارزه یې د سولې د خوزښت (Peace Moment) په بڼه (شکل، څهره) کې په (۱۹۲۹ ع ) کال کې پیل کړه چې د "خدایي خدمتګارو د تحریك" په نامه یادیده چې په پښتنو کې یې ستره بیداري راوسته، خو مونږ د باچاخان دسولې دخوزښت په هکله نه ګړیږو[1] بلکې د دې خوځښت (تحریك) مخالف اړخ ته څغلنده کتنه کوو.

---

[1] څوك چې د باچاخان دسولې دخوځت څخه ځان خبرول غواړي هغه کولی شي چې د باچا خان خپل کتاب چې :" زما ژوند او جد و جهد " نومیږي او په ۱۹۸۳ ع کال کې په کابل کې چاپ شوی دی او یا د " باچا خان او خدایي خرمتګاري" د نامه لاندې کتاب چې خان بابا ولي خان په څلورو ټوکو کې لیکلی او په پیښور کې چاپ شوی دی ولولي.

د پښتنو دقامي وحدت دبيا بشپړتيا ښکاره دښمن پيرنګی و چې پښتانه يې ويشلي و او پټ دښمن يې د ظاهرشاه باچاهي نظام و. د دې خبرې ثبوت زيات څه ته ضرورت نه لري. يوازې د ظاهرشاه لنډې پيژندګلوی (بيوګرافی) ته لنډ نظر اچول په کار دي.
ظاهر شاه په ۱۹۱۴ ع کال کې پيداشوی او په ۱۹۳۳ع کال کې باچا شوی ۴۰ کاله باچاهي يې کړې او په ۱۳۷۳ع کال کې له باچاهی څخه ليرې شو چې اوس د ايټالي په روم کې اوسيږي.
ظاهر شاه نسلي پښتون و خو د خپلې ژبې او کلتور څخه با الکل پردی شوی و په پښتو هيڅ نه پوهيده او فارسي غږيده. ده پخپله ۴۰ کال باچاهی کې د دي هڅه هم نه ده کړې چې خو ټکي پښتو ياده کړي حال دا چې په افغانستان کې د ټولو ميشته لږه کيو قومونو (ازبکو، ترکمنو، تاجکو، هزاره، او نورو) له مجموعې څخه پښتانه زيات ؤ که د ظاهرشاه دباچاهی وخت په پام کې ونيسو نو پدغه وخت کې په نړۍ کې ستر بدلونونه راغلي دي چې د پښتنو

دقامي وحدت په بشپړتیا بې اغیزې نه و. دویمه نړۍ
واله جګړه پای ته ورسیده د ملګرو ملتونو موسسه
(اقوام متحده) جوړه شوه انګلیسان د هند د نیمې
وچې څخه وتلوته مجبوره شوه. هند او د پاکستان
اسلامي جمهوریت په ۱۹۴۷ ع کال کې جوړشو. د
پښتون قام نیم وجود د پاکستان په اسلامي
جمهوریت کې پاتې شو. سمه لار خو دا وه چې
افغانستان او د پاکستان اسلامي جمهوریت یو بل ته
نژدې شوي وی چې دواړه اسلامې هیوادونه و او ډیر
څه نور یې هم سره شریك و. خو ظاهرشاه یو دوه
مخی سیاست پیل کړ. له یوې خوا یې د پښتنو ویش
ومانه او په پاکستان کې یې سفارت او قونسلګري
جوړه کړه او له بلې خوا یې ور سره دښمني
راواخیسته او ویل به یې چې په پاکستان کې د دیره
پښتنو یعنې یوې برخې پښتنو حقوق غواړو چې د
پښتونستان په نامه ځان ته ملك جوړ کړي او
افغانستان نه بیل وي. په دې توګه یې دا پوښتنه چې
د کورني سیاست پورې یې اړه لرله د بهرني سیاست

برخه و گرځوله او د اساسي قانون یا ائین د بهرني سیاست په برخه کې یې ولیکل د پاکستان د اسلامي جمهوریت سره دښمني او د پښتونستان لفظ نه یوازې د پښتنو د ویش د ټینګولو او د پښتنو د قامي وحدت په ضد و بلکې په افغانستان کې د پښتنو د ټکولو وسیله هم وه. په قام پرسته پښتنو به تورونه لګول کېده چې د پاکستان سره لاس لري او پاکستاني دی او په دې نامه به ځورول کېده. حتی پخپله پښتو ژبه به د پېښاور د راډیو د اوریدلو څخه بنده وه. زما په یاد دي چې مونږ د کونړ په صوبه کې چې په هغه وخت کې پکې راډیوګانې ډېرې کمې هم وې د پښاور د راډیو د پښتو د خپرونې د اوریدلو اجازه نه لرله او پټه به مو اوریدله. ظاهرشاه په ځای د دې چې د پاکستان سره یې دوستي ټینګه کړي وی چې د پښتنو (افغانانو) د یوالي په لور ګام و فارس یا ایران سره خپله دوستي دومره پخه کړه چې خپل دربار یې د فارسیانو نمانیده ګي وګرځوله او د

دننني ښکيلاك ښه يې غوره کړه ملك ازاد و خو اولس يې محکوم و.

له پورتنيو حقايقو څخه جوتيږي چې د پښتنو د قامي وحدت د بشپړتيا او د باچاخان د سولې د خوزښت تر تولو غټ پټ (مخفي) دښمن د ظاهرشاه نظام و. ځکه چې هغه د پښتنو په قامي وحدت کې خپل زوال ليده.

د شوروي اتحاد او بلاکونو له ړنګېدو ورسته په نړۍ کې د ويشل شوو قامونو د بيا يووالي لپاره شرايط ښه شوي دي. يو شمير قامونو خپل قامي وحدت بيرته راوستو او ځينې نور قامي وحدت ته د بيرته رسيدلو په هڅه کې دي. همدا خبره د پښتونخوا لپاره اعتبار لري چې نور د نړۍ والو ځواکونو د مقابلې ډګر نه دی او د پښتنو د بيا قامي وحدت په لاره کې کوم نړۍ وال خنډ نه شته دی له بلې خوا د تخنيکي ودې او ګلوباليزيشن (Globalisation) په لړ کې نړۍ د خپلو اقتصادي ګټو له مخې په کوچينو او غټو وحدتونو ويشل کيږي.

نه یوازې د پښتنو د قامي وحدت ښکاره او پټ دښمنان له مینځه تللي بلکې نړۍ وال خنډونه هم هوار شوي او د پښتنو بیا یووالی په یوه غټ یا کوچني چوکاټ کې امکان لري. خو دا زمونږ څخه نوی، پراخ او اوچت سوچ (اند، فکر) غواړي چې خپل سیاست د منطقې په سویه مخ په وړاندې بوزو. په دې لړ کې د حکومتونو او قامونو په مینځ کې توپیر پکار دی حکومتونه بدلیږي. قامونه پاتې کیږي، د قامونو تر مینځ ښه ګاونډیتوب د سیمې د هوسایې او ابادۍ ښه ده. د یو قام غښتلتوب او سرلوړي په دې کې پرته نه ده چې په بل قام زور زیاتی وکړي او حق یې وخوري بلکې د دې قام په پیداواري (تولیدي) او نوښتي (Creativity) ځواک کې ده چې نه یوازې دخپلې منطقې د قامونو (اولسونو) بلکې د ټول انسانیت په خدمت کې یې واچوي. هر څومره چې حکومتونه د قامونو د هیلو او ارزښتونو نماینده ګي کوي او قامي یا اولسي ارزښتونه سرکاري ارزښتونه

ګني هغومره د پرمختك لړۍ کړندۍ مخ په وړاندې درومي.
پښتانه له پېړيو راهیسې خپل ټاټوبي او وطن ته چې پيدایښتي (قدرتي، فطري) وحدت دی پښتونخوا وايي او پښتونخوا د پښتنو د ټاټوبي اولسي نوم دی حکومتونو ته هم پکار دي چې د دې خاورې سرکاري نوم هم پښتونخوا کړي که چیرته دخپلو اولسونو (قامونو) نماینده ګې کوي.
**د یو والي فلسفه:-** د یووالي یا وحدت د فلسفې بنسټ په نژدېوالي ولاړ دی که وګورو پښتانه په دوه هېوادونو پاکستان او افغانستان کې اوسيږي نو د افغانستان او پاکستان تر مینځ نژدیوالی او ګډ کار پکار دی. دا چې قامي یووالی ډیر اړخونه لري نو په مختلفو برخو کې د ګډ کار ډیرې بنې په اولسي او سرکاري سویه سره شته دي چې په اقتصادي، سیاسي، کلتوري، ادبي او د ژوند په نورو برخو کې مینځ ته راشي.

تر ټولو مهم په اقتصادي او تجارتي برخه کې ګډ کار د تګ راتګ اسانتیاوی او پښتنو ته د ډبل تابعت (شهریت) ورکول دي. هر څومره چې د دې دوارو هېوادونو تر مینځ د ژوند په مختلفو برخو کې جوړښتونه یو شانته کیږي هغومره د پښتنو د بیا یووالي لړۍ ګړندۍ کیږي او اسانتیاوې مینځ ته راځي. د بېلګې په توګه که د افغانستان او پاکستان د روزنې سیستم (نظام) یو شانته وي نو بري لیکونه به یې په دې دوارو هېوادنو کې منل کیږي او په دوارو هیوادنو کې به سرې د کار امکانات لري.

**اقتصادي اتحاد:-** په یوه سیمه ایز (منطقوي) اقتصادي اتحاد کې هم د پښتنو د بیا یووالي لړۍ غښتلې کیدلی شي. د اروپا د اتحاد په نمونه د یوه اقتصادي اتحاد لپاره شرایط برابر بریښي ځکه چې د تجارتي لارې په نښتون کې چې په پام کې نیول شوې ده د ترکمنستان څخه د افغانستان او پاکستان په سینه تیریږي د دې درې وارو هېوادونو مفادات (اقتصادي ګټې) شریک شوي دي او د خپلو

اقتصادي ګټو د ژغورنې لپاره د نړۍ د دودې د ګلوبلايزيشن (Globalisation) په پړاو کې اقتصادي اتحاد د وخت تقاضا ده. هېڅ هېواد د ګلوبلايزيشن (Globalisation) په پړاو کې خپل اقتصادي مفادات ځان ته ژغورلی نه شي او نورو سره اتحاد ته اړ دي. د اروپا اتحاد په ۱۹۵۰ع کال کې د مى د مياشتې په نهمه نېټه د اقتصادي مفاداتو له خاطره مېنځ ته راغی. د فرانسې او لويديز المان د ډبرو سکرو او فولادو توليد سره يو ځای شو او د يوې ګډې جرګه ګۍ د اداري لاندې راوستل شو. د دې نوي تنظيم دروازې نورې اروپايي هېوادونو ته وازې پاتې شوې چې بيا وروسته په ۱۹۵۱ ع کال ايټاليه، هالينډ، بلجيم او لوکسمبورګ (Luxemburg) په کې هم شامل شو. (Dahmann, 2000). وروسته بيا د اروپا د اقتصاد تنظيم، د اروپا د اتحاد په تنظيم بدل شو. نن ورځ د اروپا اتحاد مخ په غتېدو دی د ختيځې اروپا هېوادونه يې غړي کېږي په پولو کې کنترول له منځه تللی او سړی په دې هېڅ نه پوهېږي چې له يوه

هېواد څخه بل هېواد ته اوړي، يوازې له ليکنو څخه يې پته لګيږي چې دا کوم هېواد دی. د ګډو اسعارو (Euro) (پيسو، ياني روپو) پرېکړه شوې چې د ايرو په نامه ياديږي او راتلونکي کال کې به رواج شي. د اروپا لپاره په نوي جوړښت او د يوې اتحادي اروپا په لور په نوي نظم بحثونه کيږي.

**د پښتنو د بيا يووالي لړۍ (پروسه):-** د پښتنو د بيا يووالي لړۍ په عمل کې د جګړې په وخت کې د افغانستان څخه پاکستان ته د پښتنو په کډې کولو سره پيل شوې ده يو له بل سره اړيکې پاخه شوي خپلوي ګانې مينځ ته راغلي او ځينې کډوال پښتانه دوه کوره شوي دي د کډوالو پښتنو نوی کول پاکستان خپل دويم کور ګڼي د پښتنو قامي سياسي مشر او هم د پښتون د پېژند (شناخت) او قامي وحدت د بيا بشپړوالي لپاره اوچت ګامونه اخستلي دي. د پښتون د قامي وحدت معمار ننګيالی مشر محمد افضل خان (خان لالا) له باچا خان څخه وروسته، د لومړي ځل لپاره د پاکستان په قومي

اسمبلۍ (مرکزي پارلمان) کې د پښتونخوا د صوبې
نوم یاد کړ، چې د پارلمان د مشر (سپیکر) له خوا
پرې اعتراض وشو، چې په دې نامه په پاکستان کې
کومه صوبه نشته، خو محمد افضل خان دلیلونه
وړاندې کړل او د پښتنونخوا د نوم دفاع یې وکړه.
هسې خو د پښتونخوا د نوم یادول کومه نوې خبره نه
ده، لکه څنګه مو چې مخکې وویل پښتانه خپل
هېواد ته له پېړیو راهیسې پښتونخوا وایي.
پښتونخوا د پښتنو د هیواد قامي یا اولسي نوم دی.
د ادب په ډګر کې هم له ډیرې مودې راهیسې رواج و.
د سیاست ډګر ته هم راوتلی و، د سیاسي ګوندونو په
نومونو کې منل شوی و "پښتونخوا ملي عوامي
پارټي" او د "پښتونخوا قامي پارټي" یې بېلګې دي.
د پښتنو ټولنیز اولسیز ګوند (پښتون سوشل
ډیموکراتیک پارټي) هم د پښتنو وطن او ټاټوبي ته د
پښتونخوا لفظ کاروي او د خپرونې نوم یې هم دی.
نوې خبره د پاکستان په قومي اسمبلۍ (مرکزي
پارلمان) کې د باچا خان نه وروسته د پښتونخوا په

نوم د صوبې يادونه وه "حضرت باچا خان بابا د پاکستان په قانون سازي اسمبلي کې دا صوبه هميشه د پښتونخوا په نوم ياه کړې ده" (سيد رحمان، په بنګلا کې ۱۹۹۸).

محمدافضل خان ، ۱۹۹۴ ع کال کې چې په پاکستان کې د مرکزي (وفاقي) حکومت وزير و د پښتون قامي وحدت په نامه دکتاب په شکل کې يو پيغام قام اونړۍ والوته وړاندې کړ. (محمد افضل خان، ۱۹۹۴) په پيغام کې پښتنو ته دقامي وحدت لار په ګوته شوې او نړۍ والو ته غږ شوی دی چې په دې لاره کې د پښتنو ملاتړ وکړي. د ستر مشر خان بابا خان عبدالولي خان او درونو مشرانو اجمل ختټك، حاجي غلام احمدبلور، او يوشمير نورو ننګياليو مشرانو په هاند او کوشش سره په صوبه کې د پښتنونخوا د اينبودلو قرارداد منظور کړ او په اسمبلۍ کې موجودو ۷۲ غړو کې يوازې دوو غړو د قرارداد مخالفت وکړ. د پښتونخوا د نوم قرارداد د "اي اين پي" پارلماني مشري ميرمن نسيم ولي

خـان، ډپـټي سـپيکر حـاجي محمـد عديـل، ميـا افتخارحسين اوپاکستان پيپلز پارټي يو فعال غړي نجم الدين خان وړاندې کړ " ( سليم راز ، ښکلا کې، ۱۹۹۸ ) د پښتونخـوا د نـوم دا تـاريخي پريکـړه د پښتون اولس د هيلو او ارزو هنداره ده په تيره بيا د مخـالفې ډلـې د مشـر (د اپوزيشـن ليـډر) افتـاب احمدخان شيرپاو عمل چې د قـرارداد په پاس کولو کې يې مرسـتـه سـرته رسـولې ده د پښتـون اولـس د واقعـي نمـاينده ګۍ نـښه ده. خـو د نوازشـريف حکومت چې د خپـل هيـواد د قومونـو د ابادۍ او هيلو خيال يې نه ساته د پښتنو حق ته چې د نماينده ګانو په پريکړې سره يې قانوني بڼه غوره کړې او قانوني حق يې ګرځېدلی دی غـاړه کښېښودله چې د صوبې سرکاري نوم لکه په پاکسـتان کې د نـورو ميشته قومونو په څير ( پنجا ب، سـند، بلـوچسـتان ) پښتو نخوا شي او د انګليسانو له خوا ايښودل شوی نوم "صوبه سرحد" چې د يوې منطقې د ځانګړي مقام ( Status) مانا لري، ليرې کړي.

محمد افضل خان "خان لالا" د قام په خدمت نه ستړی کیږي او د روان دوه زرم کال د نومبر د میاشتې په څوارلسمه او پنځلسمه نیټه یې په پېښاور کې د پښتون/ افغان قوم نماینده جرګه راغوښتلې ده. دا تاریخ جوړونکې دوه ورځنۍ جرګه یو ټکی اجنډا لري او هغه دا دی چې "د جرګې نماینده غړي به یوازې په یوه نکته دخپلو خیالاتو څرګندونه وکړي یعنې دا چې د یویشتمې پیړۍ (صدۍ) په پیل کې به د قام په حیث دپښتون / افغان مستقبل څه وي" (محمد افضل خان بلنه، ۲۰۰۰).
دجرګې د نېټې د ټاکلو څخه د مخه په پښتونخوا او بهر کې د پښتنو د قومي، سیاسي مشرانو او روڼ اند و (روشن فکران) څخه نظریې غوښتل شوې وې.
په ادبي برخه کې د نامتو لیکوال او شاعر لایق زاده لایق د مشرۍ لاندې "د پښتونخوا د پوهنې دیره" چې د لر او بر لیکوالان او پوهان پکې راټول شوي دي، همدا راز د قام پرسته لیکوالانو سیلم راز، انور زیب خان او نورو هڅې چې د روان دوه زرم عیسوي کال

د نومبر د میاشتې په دریمه نیټه یې عالمي پښتو کنفرانس راغوښتی چې درې ورځې دوام کوي او لر و بر پښتانه لیکوالان او مینه وال پکې برخه اخلي د پښتنو د بیا یووالي (قامي وحدت) په خدمت کې دي. د دې لپاره چې د پښتنو د بیا یووالي (قامي وحدت) لړۍ ګړندۍ مخ په وړاندې لاړه شي دا د هر پښتون دنده او زمه واري ده چې د دې هڅه وکړي چې د افعانستان او پاکستان تر مینځ د ژوند په ټولو برخو کې په اولسي او سرکاري سویه د ګډ کار بنې مینځ ته راشي او د ګډ کار سمبالښت لپاره د اروپا د پارلمان په نمونه د دواړو هیوادونو د اولسي نمایندګانو یوه ګډه جرګه یعنې ګډ پارلمان جوړشي، او د منطقې د نوروهیوادونو لپاره دروازې خلاصې پریږدي.

# په خپل وطن کې له ژبې او کلتور څخه پردي کيدنه

په خپل وطن کې د ژبې او کلتور څخه د پښتنو د پردي کيدلو په باب سمسور افغان پخيل کتاب کې چې دويمه سقاوي نوميږي او په ۱۹۹۸ عيسوي کال په پيښور، پښتونخوا کې چاپ شوی دی ليکي چې "دپوهاند عبدالشکور رشاد په وينا" د ملګرو ملتو د يو رقم لـه مخې پـه افغانستان کې پـه سلوکې لـس پښتانـه فارسيوانان شـوي دي ځينـو خپلواکـو او مستقلو څيړنـو هـم د ملـګرو ملتونـو دا احصائيـه واقعيت تـه نـژدې ګڼلـې ده. پـه پيښور کـې د واك فونډيشن د افغانستان لپاره يوه سروې چې د شپږو کلونو په موده کې يې کړې ده ښيي چې د افغانستان په ټول نفوس کې لـه ۶۲,۷۳ فيصدو پښتنو څخـه ۵۵% خپلـه ژبـه ساتلې او ۷,۷۳ فيصده پښتانـه فارسيوانان شوي، يـانې د پښتنو په سلو کې ۱۲,۷ فارسي او پـه سلو کـې۸۷,۳ پښتـو وايـي. دا ستم

یوازې پر پښتنو نه دی شوی، بلکې پر نورو لږکیو قومونو هم شوی." سمور افغان بیا د افغانستان د قومي او ژبني جوړښت دځرنګوالي په هکله د واك فونډیشن دسروې پایلې (نتجې) په لاندې ډول انځوروي

| | | د ختې پر نسبت | د ژبې پر نسبت |
|---|---|---|---|
| ګڼه | قومونه | د قومونو فیصدي | د قومونو فیصدي |
| ۱ | پښتون | ۶۲,۷۳ | ۵۵ |
| ۲ | تاجك | ۱۲,۳۷ | ۳۳ |
| ۳ | هزاه | ۹,۰۰ | ۰,۰۰ |
| ۴ | ازبك | ۶,۱۰ | ۵,۸۰ |
| ۵ | ترکمن | ۲,۶۹ | ۱,۴ |
| ۶ | ایماق | ۲,۶۸ | ۰ |

(*سمسور، افغان: دوهمه سقاوي، پېښور ۱۹۹۸*)

له پورتني رقم ځخه را په ګوته کېږي چې په افغانستان کې پښتانه د نورو میشتو قومونو لکه ازبك او ترکمن په پرتله زیات فارسیوانان شوي دي

حال دا چې پښتانه په افغانستان کې ستر ډیره کې قام دی چې د ټولو اوسیدونکو وګړو له نیمایي څخه زیات جوړوي. دلته دا پوښتنه را پیداکیږي چې ایا دا د پښتنو نسلي کمزوري ده چې خپله ژبه اوکلتور یې د نورو قامونو په پرتله زیات له لاسه ورکړی دی او که څه نور علتونه شته دی او نسلي کمزوري یې نه ده. مونږ دا پوښتنه د خپلې څیړنې موضوع ګرځوو.

**څیړنه:-** په دې څیړنه کې مونږ د ژورې ساپوهنې یا د را سپړیدلو د ساپوهنې (Psychoanalyse) د پوهینزې لارې څخه کار اخلوچې د موجوده ربړو او ستونزو علت په تیر وخت کې لټوي. نو ځکه مونږ په تیر وخت کې یو شمیر حقایق را په ګوته کوو. چې زمونږ د پوښتنې لپاره ضروري دي. او دې واقعیت ته پاملرنه کوو چې کلتورونه چې ژبه ي کره لړ جوړوي د هنر او فن له لیارې ځان پراخوي او یو پر بل باندې اغیزه کوي خو بنکیلاك خپل بیرته پاتې کلتور د زور له لیارې پراخوي. غښتلي بنکلیلاکونه دا کار په سیده توګه او کمزوري بنکلیلاکونه یې په ناسیده

توګه سر ته رسوي. فارسيانو يا ايرانيانو دوه ځلې پښتونخوا ته په ناسيده توګه لاسونه راغځولي دي.

## ١ ) د صفويانو د اقتدار په وخت کې

فارسيانو (ايرانيانو) د صفويانو د اقتدار په وخت کې يو شمير کسان د ملا، پير او صوفي په جامه کې پښتونخوا ته راوليږل چې په جماعتونو يې چې په هغه وخت کې د روزنې يوازني مرکزونه وه قبضه وکړه او فارسي ادبيات پنج کتاب، ګلستان، بوستان او زليخا و د ديني روزنې برخه وګرځوله حال دا چې په نتيجه کې پښتانه نه يوازې پخپله ژبه پښتو د ليك او لوست څخه بې برخې پاتي شو بلکې له ديني زده کړې هم ليرې پاتې شو. په پښتونخوا کې اوس ډير داسي قبرونه شته دی چې د نومونو څخه يې جوتيږي چې ايراني متصوفين او روحانين دي لکه د کونړ د پشد په کلي کې د ميرهمدان غوث قبر چې له نوم څخه په ډاګه دا غوث معلوميږي چې د فارس (ايران) د همدان دي.

## ۲) د احمد شاه بابا د زامنو د بې اتفاقۍ وخت

ایرانیانو (فارسیانو) د احمدشاه بابا د زامنو د بې اتفاقۍ له امله بیا د دې موقع پیداکړه چې پښتونخوا ته راشي ګنډاسنګ (Ganda Singh) پدې هکله لیکي چې " احمدشاه څلور زامن لرل: سلیمان، تیمور، پرویز او سکندر. ده تیمور د خپل ځای نیوونکي په حیث په نامه کړ، خو د ده صدراعظم شاه ولي خان خپل زوم شهزاده سلیمان په قندهار کې د پاچا په توګه ولس ته وروپېژاند.

سره له دې هم تیمور په بري سره قندهار ته ننووت او د باچا خول (تاج) یې پر سر کیښودل شو. شاه ولي خان او د ده شریکان یې له تیغه تیر شول. د کندهار د خلکو د پاڅون د روحیې په سبب چې د باچا یې له پاره یې د سلیمان غوښتني ملا تړ کوه، شاهي دربار او پایتخت کابل ته ولیږدید.

دلته حکومت بیا تنظیم او تر ممکنه حده یې له دراني قبیلوي مشرانو څخه قدرت واخیست. ده دیوه سدوزي په حیث په سدوزیو اعتماد کولی نه شو.

ځرنګه چې ده له دوي ځخه ځيني هغه مقامونه بېرته اخيستلي نه شول چې پلار يې د هغوی کورنيو ته په ميراثي توګه ورکړي وو، نو يو شمير نوي يې ايجاد کړل او د هغوی يوشمير يې ور تبديل کړل. خپل شخصي کارډ يې له اسحق زيو ځخه جوړ کړ او د پارسي قزلباشانو ځخه يې د سورو يوه دولس زره کسيزه اضافي ډله راوايستله".
(ګنډاسنګ، ۱۹۸۷) په دې توګه سره د تيمورشاه د دربار واکې د ايرانيانو (فارسيانو) په لاس کې ورغلې او د پښتنو هيواد چې ايرانيانو ورته افغانان ويل د افغانستان په نوم يې شهرت پيدا کړ. خو د دربار په وجود کې د خپلې ژبې او کلتور ځخه د افغانانو (پښتنو) د پردي کيدلو لړۍ پيل شوه. دا لړۍ د ظاهر شاه د حکومت په وخت کې تر ټولو لوړ پړاو ته ورسيده اوګړندۍ مخ په وړاندې لاړه د ظاهر شاه د دربار او حکومت ژبه فارسي وه. حکومت يې شخصي بڼه لرله که څه هم د ده د حکومت په اخرني وخت کې يوه اولسي جرګه ( پارلمان ) موجود وه خو د اولسي جرګې له مينځه حکومت نه ټاکل کيده او

حکومت به د ده لـه خوا تاکل کيده. د ده د باچاهی
په وخت کې د باچا خان د سولې خوځښت په پښتنو
کې بيداري پيدا کړې وه نو ظاهرشاه پښتنو د تير
اسيتلو لپاره د پښتو ټولنې جوړولو ته چې د يو شمير
پښتنو له خوا يې هڅې پيل شوې وې اجازه ورکړه.
پښتو يې تش په نامه ملي او رسمي ژبه کړه خو د ده
دربار ته دننه نه شوه سرکاري او حکومتي چارې په
فارسي چليدې. د دې لپاره چې پدې واقيعتونو پرده
واچوي او ځان له ايرانيانو څخه مستقل وښايي نو د
فارسي په ژبه يې " دري" نوم کيښود. د ظاهر شاه
حکومت په افغانستان کې په پښتنو کې د سر سړی
نه پريښوده يا به يې په کورسيو او چوکيو اخيسته او
د خپلې پښتو اوکلتور څخه به يې تيراوه او يا به يې
په مختلفو تورونو سره بندي او يا فراره و او ځوروه.
لنډه دا چې پښتانه (افغانان) پخپل وطن افغانستان
کې نه يوازې بې واکه و بلکې د نورو قومونو په
پرتله د زيات فشار لاندې و. د ظاهر شاه کورنی د
شخصي نظام د ختميدلو ورسته د خپلې ژبې او
کلتور څخه د پردي کيدلو لړی هم ختم شوه او پښتو

دربار ته سر دننه کړ. هغه پښتانه چې د خپل کلتور
څخه د پردي کيدلو په لاره کې پاتي شو د پيژند په
کړکيچ ( Reaktive schizophrenie) اخته شوي دي.
دا ډول کسان دوه پيژنده لري چې يو اصلي اوبل يې
نقلي دی. دا کړکيچ د دماغ د شلخي کيدلو نه پيل
کيږي او بيا ټول سړيتوب ته پراخيږي او سړيتوب
(شخصيت) ويشي چې دوه ځانه لري يو اصلي او بل
شلخی. چې دواړه يو د بل سره په لانجه کې وي چې
پدې نه پوهيږي چې پښتون دی او که نه،کله ځان
پښتون گڼي کله ځان په نورو نومونو د پښتنو څخه
بيلوي.

**پايله** (نتيجه):- د پورتنيو ټکو په رڼا کې سړی ويلی
شي چې په افغانستان کې د نورو قومونو په پرتله د
پښتنو د زيات فارسيوان کيدلو علت د دې قام نسلي
کمزوري نه ده بلکې د دننني ښکيلاکې مناسباتو
محصول دی. په پاکستان کې د ميشته پښتنو سره
پرتله هم راپه گوته کوي چې د خپلې ژبې او کلتور
څخه پردي کيدنه د پښتنو نسلي کمزوري نه ده. سره
له دې چې پښتانه په پاکستان کې لږه کي دي دغلته

هغه پښتانه چې د حکومت سره کار کوي ځيني يې په پښتوليکلو نه پوهيږي ځکه چې په مورنۍ ژبه يې ښوونځی نه دی ويلې خو پښتو ويلی شي او خپله ژبه او کلتور يې بيخي له لاسه نه دی ورکړی. د يو شمير پوهانو د اټکل له مخې په سلو کې لږ تر لږه ۷۰ پښتانه پخپله ژبه له ليك او لوست څخه بې برخې پاتې شوي دي. د دې بې عدالتۍ د مينځه وړلو او دخپلې ژبې او کلتور څخه د پردي کيدلو د مخنيوي لپاره ښه لاره دا ده چې د افغانستان ټول قومونه پخپله خوښه په يوه فدرالي نظام کې چې ډير ګونديزه پارلماني اولسولي ولري راغونډ شي او د هيواد په سياسي، اقتصادي اوکلتوري ژوند کې د خپل شمير هومره برخه ولري او د نړۍ وال دود سره سم د ډيره کې قام ژبه پښتو د هيواد د ملي سرکاري او د روزنې ژبه وي او د نور قومونو په ژبو دې لومړني امکانات برابر وي.

# په پردي وطن کې له خپلې ژبې اوکلتور نه پردي کيدنه

پخپل وطن کې دجګړې له کبله ډير پښتانه دګاونډي هيوادونو سربيره ليرې وطنونو ته په تيره بيا لويديزو هيوادونو ته تللي او هلته ديره شوي دي په پردي وطن کې دخپلې ژبې او کلتور نه د پردي کيدلو امکان شته دی. خو پردي وطن کې د خپلې ژبي او کلتور څخه پردي کيدنه لکه پخپل وطن کې د ښکيلاکي مناسباتو له کبه نه را منځ ته کيږي، دلته لومړی ډلوايز اخلاقي زه (وجدان) چې د پښتنو د غټې کورنۍ محصول دی د ځانګړي اخلاقي زه (وجدان) چې د لويديز د کوچنۍ کورنۍ محصول دی په مقابله کې راځي او ورو-ورو ځانګړی اخلاقي زه په ډله ايز اخلاقي (وجدان) غالبيږي او پدې توګه د خپلې ژبې او کلتور څخه د پردي کيدلو لړۍ پيل کيږي هغه کسان چې د پيژند له کړکيچ سره مخامخ دي او شلخی ذهن لري ژر ځانګړی (انفرادي) اخلاقي زه پيدا کوي او په دې توګه د خپل کلتور څخه د

پردي کېدلو لړۍ پیل کېږي. په ډله ایز اخلاقي زه (وجدان) د ځانګړي اخلاقي زه غلبه څه اسان کار نه دی خو بیا هم دا له دې پورې اړه لري چې سړی ځانته او که د کورنۍ سره پردي وطن ته کډوال شوی دی، په کوم حالت کې دی او کوم شرایط ورته په پردي هېواد کې د خپلې ژبې او کلتور د ژغورنې لپاره شته دی چې څېړنه یې مونږ د کتاب د موضوع له ډګر څخه لېرې کوي او له دې کبله ترې تېرېږو خو دومره وایو چې په جرمني کې پښتو ژبه په ښوونځیو کې د درس رسمي ژبه ده. خو د پښتنو زده کوونکو شمېر ډېر کم دی نو په ښوونځي کې درس نه ورکول کېږي خو ازموینه ترې په پښتو کې اخستل کېږي. زه د لسو کلونو راهیسې د زده کوونکو څخه د جرمني د پوهنې د وزارت په سپارښت د پښتو ازموینه اخلم په جرمني کې هر زده کوونکی مجبور دی چې د جرمنې ژبې سربېره دوه نورې ژبې زده کړي. بهرنیان کولی شي چې یوه خپله مورنۍ ژبه وټاکي.

FEATURE-Whatever happened to the lost tribes of Israel?

By Megan Goldin

DIMONA, Israel, Aug 21 (Reuters) - Living in the shadow of Israel's infamous nuclear reactor, Dimona's Black Hebrews are polygamous vegans who believe they are descended from a lost Israelite tribe.

The community of African-Americans which moved to Israel from the United States in 1969 calls its enclave in the Israeli desert town of Dimona, the Kingdom of Yah.

The Black Hebrews say they are the descendants of an ancient Jewish tribe forced into exile in West Africa and taken to the Americas as slaves centuries ago.

Their white-robed spokesman who calls himself Ahmadiel Ben-Yehuda says the songs about Zion and the Jordan River sung by African slaves as they worked in the fields are evidence of their Israelite roots.

Most scholars dismiss the cult's claims as far-fetched and say the proof to support their belief is tenuous at best.

But even if the Black Hebrews' claims are nothing more than fiction, the fact remains that 2,700 years after the 10 tribes of Israel were taken into exile and vanished, the fate of the lost tribes remains one of history's most intriguing mysteries.

ASSYRIANS TOOK THE 10 TRIBES OF ISRAEL INTO CAPTIVITY

In 722 BC Assyrian warriors captured the northern Kingdom of Israel which was home to 10 of the 12 tribes of Israel and took the inhabitants into captivity.

The Bible's Book of Kings records they were exiled "in Halah and in Habor by the river Gozan and in the cities of the Medes".

The other two tribes, Judah and Benjamin, which lived in the southern Israelite Kingdom of Judah, were forced into exile by the Romans centuries later in AD 70. Unlike their northern brothers who were assimilated, these tribes maintained their identity and are the ancestors of modern Jews.

Rabbi Eliyahu Avichail has been hunting for the lost tribes for decades. He has undertaken dangerous journeys to Myanmar (formerly Burma) and other war-torn parts of Asia to pursue the descendants of a people who disappeared almost 3,000 years ago.

"I am looking for Jewish customs and Jewish signs among people who are not Jewish. That's what it says in the Bible," Avichail said.

The Pathans of Afghanistan and Pakistan head the list of the peoples Avichail believes are lost tribes.

Avichail says the Pathans' ancient name is "Bnei Yisrael" or the sons of Israel and many of the clans are named after the 10 lost Israelite tribes like Ruben, Asher, Naftali and Ephraim.

But even more convincing are Pathan customs which mirror ancient Jewish rituals still practiced today.

Like Jews, Avichail says, the Pathans marry under a wedding canopy, light candles on the eve of the Sabbath and wear prayer shawls similar to those used by religious Jews. He says they even circumcise their eight-day-old sons as Jews do.

Avichail believes that after the Assyrian conquests, the tribes scattered along the Silk Road to Kashmir, China, Burma and Thailand. He suspects they may have gone as far as Japan.

"We had in the Bible a very clear tradition that the 10 tribes were exiled to the east of Israel and the prophet Isaiah in the Bible told us they will come back from this direction," Avichail said.

Not content to just study Isaiah's prophesies, Avichail is trying to fulfil them by bringing people he believes to be from the lost tribes back to Judaism and the Holy Land.

THE TRIBE OF MENASHE MAY BE LIVING IN EAST ASIA

One of Avichail's biggest success stories is the Shinlung people from the Myanmar-Indian border who believe they are the Israelite tribe of Menashe. He has already helped around 500 of them move to Israel and convert to Judaism.

According to Shinlung legends they are one of the 10 tribes of Israel that was exiled in China and later expelled to where they live today. They practice sacrifices similar to those in the Bible and celebrate holidays reminiscent of ancient Jewish harvest festivals.

So strongly do they believe they are Jews that some members of "the tribe of Menashe", as they call themselves, have begun to practise Orthodox Judaism and teach their children Hebrew.

Esther Thangjom moved to Israel and converted to Judaism to fulfil her belief the tribes must return to the Holy Land. Thangjom, who proudly wears a Star of David around her neck, has no doubt that she is descended from the tribe of Menashe.

"As a child every time something was mentioned about Israel my heart would move," she said.

CYNICAL EXPERTS SAY LOST TRIBES ARE LOST FOREVER

Dr Rivka Gonen, an archaeologist and the curator of Jewish ethnography at the Israel Museum in Jerusalem, believes the 10 tribes have disappeared for good.

She says it is inconceivable that people exiled thousands of years ago would have retained any semblance of their Jewish heritage.

Gonen said that even in the Bible it says the 10 tribes were conquered because they were not practicing Jewish customs and worshipped idols. She says there is no reason to expect they kept Jewish rituals in exile when they didn't do it at home.

"Wherever you find a tribe claiming they belong to the 10 lost tribes, you always find the fingerprints of Christian missionaries or romantics who came with the Bible and when they found vague similarities of names and customs, they immediately saw it as proof," Gonen said.

She says the methods used to trace the lost tribes is not at all scientific either anthropologically or linguistically as many languages have words which sound similar and rituals like circumcision are not uniquely Jewish.

Many of the theories border on the absurd, says Gonen, like the British-Israelites who claim the British people are from the 10 tribes or those who say the Danes are from the lost tribe of Dan.

"People are attracted to mysteries of the past and this is one of them because the tribes were exiled and God promised they would return," she said.

REUTERS

# اخستونځي


۱. ارمغان خوشحال: میا سید رسول رسا، یونیورسټي ایجنسي، خیبر بازار، پېښور، بې کاله.
۲. الکزاندر هماګایف "مرکه" ویډیو فلم، جرمني، ۱۹۹۴ ع کال.
۳. پښتني دودونه: د پښتو ټولنې د ادبیانو د څانګې له خوا، کابل، ۱۹۵۷ ع کال.
۴. خان عبدالولي خان: "باچا خان او خدايي خدمتګار" په ځلورو ټوکونو کې؛ پېښور (دریم ټوك ۱۹۹۸ کال).
۵. رشتین صدیق الله: "پښتنی لاربنود"
۶. "ښکلا": مسول مدیر شېرشاه ترخوی. پېښور، فروري ۱۹۹۸ ع کال.
۷. ستوری کبیر: "د هوښیارتیا تله" خپرونکی: د پښتونخوا د پوهنې دېره، پېښور، ۲۰۰۰ ع کال.
۸. سائل رحمت شاه: "د ښایستونو د پسرلي بادونه" پېښور، دوهم چاپ ۱۹۹۵ ع کال.
۹. سائل رحمت شاه: "پایکوب": د عبدالباري جهاني، د شعرونو د مجموعې کتاب ته سریزه پېښور، ۱۹۹۳ ع کال.

۱۰ سمسور افغان: "دوېمه سقاوی" چاپ؛ پېښور پښتونخوا، ۱۹۹۸ کال؛ خپرونکی: د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه جرمني.
۱۱. ظفرکاکاخیل سید بهادرشاه: "پښتانه د تاریخ په رڼا کې" یونیورستي بك ایجنسي، خیبربازار، پېښور، ۱۹۶۵ع کال.
۱۲. ظریف پوهاند ډاکټر ګل جانان: "پښتو میخمري ډیبونه ۲۵۰۰ کله پخوا" چاپ؛ زحمت پرنټینګ پریس پېښور، ۱۹۹۴ ع کال.
۱۳. عبدالغفار: "زما ژوند او مبارزه" کابل دولتي مطبعه، ۱۹۸۳ ع کال.
۱۴. عبدالحمید مومند دیوان، د افغانستان د علومو اکاډمي، د ژبو او ادبیاتو مرکز، پښتو ټولنه کابل، ۱۹۸۳ ع کال.
۱۵. قاضي عطاالله خان: "د پښتنو تاریخ" جلد اول؛ خپرونکی: د مروتو ادبي جرګه، سرای نورنګ، ۱۹۴۷ ع کال.
۱۶. ډاکټر ګنډاسنګ: "دراني احمدشاه" مترجم؛ سر محقق مرستیال نصرالله سوبمن منګل، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۹۸۷ع کال.

۱۷. "د ملنګ جان خوږې نغمې": پښتو ټولنه، کابل ۱۹۹۵ع کال.
۱۸. محمد ګل خان مومند: مرتب: همېش خلیل، یونیورستي بك ایجنسي، خیبر بازار، پېښور، ۱۹۹۵ع کال.
۱۹. محمد افضل خان: "پښتون قامي وحدت" خپرونکی: پښتونخوا پبلیکیشنز، پېښور، ۱۹۹۴ ع کال.
20. Damann, K: "Schumnan- Plan" Akt. Stichwort, DW. 09. Mai. 2000
21. Duden Lexikon, im Dudenverlag, Mannheim, 1962
22. Engel, Friedrich: Der Ursprung der Familie, des Privateigentums und des Staats, Dietz Verlag Berlin 1974.
23. Freud, S: "Das unheimliche; Aufsatze zur Literatur" Vgl. Fischer 1963.
24. Freud, S "Gesammelte Werke" Bd 13. Vgl. Fischer 1868.
25. Goldin, M: "Feature- what ever happened to the lost Tribes of Israel" Reuter 21 Aug. 2000.
26. Graser, Luitgard Berm: "Familie und Tieren" Ernst Reinhardt Verlag Muenchen/ Basel 1970.
27. Klimburg: "Afghanistan" Wien 1966.
28. Koch, K: "Der Baum Test" Vlg. Hans Huber Bern und Stuttgart 1957.

29. Krause, W: "Afghanistan" Tuebingen und Basel 1972.
30. Mayers Neues Lexikon, Mannhein\ Wien, Zurich. 1980 Bd 7
31. MC. Grath, Josef. E: "Socialpsychology" London, New York, Sydney, Toronto. 1970.
32. Mepin, D: in Jeppesen, Helle: "Auslandische Autoren in NRW" Zeitfunk/ Seite 3, DW 30. Juni 2000.
33. Merz, F. Stelz. 1: "Einfuhrhung in die Erbpsychologie" Kohlhammer, Stuttgart 1970.
34. Oerter, Rolf: Moderne Entwicklungsychologie, Verlag Ludwig Auer Donauworth 1969.
35. Rohracher H: "Einfuhrung in die psychologie" Wien, Insbruech 1965, S. 324 – 331.
36. Salber W: Die Entwicklung der Sprache in Handbuch der Psychologie Bd 3, Verl. Hogrefe, Gottingen 1958.
37. Stern, W.: Psychologie der Fruhen Kindheit Bis sechstem Lebensjahr, Leipzig 1927.
38. Teplow B.M.: "Lehrbuch der psychologie" Frankfurt 1972.

# خوښنه او مننه

له ښاغلي نسیم خان ستوري څخه چې په پوره تلوار سره یې د دې کتاب مسوده په کمپوټر لیکلې او د ښاغلي امیر کروړ ستوري څخه چې د دې کتاب لګښت یې په غاړه اخستلی دی همدغسې د پښتو د قامي ادبي جرګې د مشر عبدالنصیر نصیر او د لوی مونشي عزیز سرشار څخه چې د دې کتاب په سمبالښت کې یې مرسته سرته رسولې ده د زړه له کومې مننه کوم.

څرنګه چې په پښتنو کې د ساپوهنې شمېر کم دی نو ما په دې کتاب کې د دې هڅه کړې ده چې په داسې ژبه یې ولیکم چې غېرې ساپوهان پرې هم پوه شي یعنې ساپوهنه د غېرې ساپوهانو له پاره په دې برخه کې محمد شرین ګردیوال او هدایت الله خان بنګش څخه ډیره خوښنه چې دا کتاب یې لوستلې او ماته یې ډاډ راکړی چې غېرې ساپوهان پرې هم پوهېږي.

په پای کې د ختیځ د بیا رغونې د ادارې (کور) له مشر ډاکټر محمد فرید بزګر او د کور د خپرونو د څانګې له مسوول ښاغلي نعمت الله رسولي، د پښتونخوا د پوهنې د دیرې د مشر نامتو لیکوال، شاعر، ادیب او افسانه

نــګار لايــق زاده لايــق، عبدالبصــير بــېدار، ننګيــالي ميردادخيل څخه ډېره خوښنه کوم چې د دې کتاب د چاپ او خپرېدو کار يې په ښه سرته رسولی دی.

ډوکټور کبير ستوری

جرمني: ۱۵/۱۰/۲۰۰۰

# اعزاز

د نړۍ په مخ چې له کومې ورځې نه د انساني ژوند پیل شوی دی له هغې ورځې نه واخله تر ننه پورې د قامونو تر مینځه د تړون او رابطې له پاره ټولې لارې چارې لټولې شي. په دغه ټولو لارو چارو کې ژبې ته بنیادي حیثیت حاصل دی ژبه د یو قام د یو اولس په پېژندګلوۍ کې ډېر اهم او اساسي رول لري. د ډاکټر کبیر ستوري دغه کتاب د ژبې په حواله ډېر ګټور او نفسیاتي بحثونه لري. دا د ډاکټر کبیر ستوري اعزاز دی چې په یو وخت یو اړخ ته د شعر په ژبه د اولس په نبضونو د ګوتو ایښودو په هنر پوهېږي او بل اړخ ته د ساه پوهنې د ماهر په حیث د ژوند د ټولو کشالو په رازونو پوهه دی. "د پښتونخوا د پوهنې دیره" دا اعزاز لري چې د دې نه وړاندې یې د ډاکټر کبیر ستوري د ساه پوهنې یو بل ګټور کتاب "د هوښیارتیا تله" چاپ ته سپارلې دی. دا د ساه پوهنې د علم په حواله یو ډېر ګټور شعوري کوښښ دی. د پوهنې دیرې تر اوسه پورې دولس شعري او نثري کتابونه د

پښتو په ناوې پیرزو کړې دې. په راتلونکې وخت کې د پوهنې دیره د پښتو آدب د خدمت د نور فعالیت له پاره د پروګرامونو جوړولو اراده لري. څو د ژبې د خدمت د ټولو جذباتو عملي قدر وکړی شي. او بیا په خصوصي توګه د ډاکټر کبیر ستوري په داسې موضوعاتو لیکنې چاپ ته سپارل د پوهنې د دیرې له پاره ډیره د ویاړ خبره ده. دغه کتاب چې ستاسو په لاس کې دی د انساني ژوند د یو داسې نفسیاتي اړخ احاطه کوي کوم چې شعوري او لا شعوري طور خپل ارزښت او اهمیت د ژوند د هر راتلونکې نوې ورځې سره اشنا کوي. دېره باور لري چې د ډاکټر کبیر ستوري دغه کوښښ به د نفسیاتي پوهانو ته د لټون نوې لارې په ګوته کړي.

په درنښت

*لایق زاده لایق*

*د پښتونخوا د پوهنې دیره*

*راحت آباد - پېښور*

## د پښتونخوا د پوهنې د ديرې چاپ شوي آثار په دې ډول دي

۱. ګل پاڼه، شعري ټولګه شاعر: مبارز څاپي
۲. د قلم توره شعري ټولګه شاعر: ډاکټر کبير ستوری
۳. ژوندی وزر شعري ټولګه شاعر: ډاکټر ديدار يوسفزی
۴. ماته آئينه، افسانې ليکوال: لايق زاده لايق
۵. مرغزار شعري ټولګه شاعر: حنيف قيس
۶. لعلونه، د سوات او ملاکنډ د شاعرانو تذکره، ټولونکي: رحيم سيد او اختر ملك
۷. ډالۍ، د حميد بابا او علي خان بابا منتخب کلامونه، ټولونکی: لايق زاده لايق
۸. يادونه، شعري ټولګه شاعر: ابراهيم بيدروال
۹. ژوند او جانان، شعري ټولګه شاعر: سعيدالله خادم
۱۰. راښکلي غشي، شعري ټولګه شاعر:ډاکټر ديدار يوسفزی
۱۱. د هوښيارتيا تله: (ساپوهنه)، ډاکټر کبير ستوری
۱۲. ژبساپوهنه، : (ساپوهنه)، ډاکټر کبير ستوری
۱۳. کليات محمددين مقيد ، ترتيب:الياس ټل وال او اسير منګل چاپ ته تيار
۱۴. ليچې او بنګړي، ليکوال: محمد سراج عارف چاپ ته تيار

# د کبیر ستوري لیکنې

۱. ویره: (د ساپوهنې په رڼا کې د ویرې نظري پېمانه او درمل) جرمني. ۱۹۹۴ ع

۲. ژوندي خیالونه: (د شعرونو ټولګه) پېښور، پښتونخوا. ۱۹۹۷ ع

۳. د قلم توره: (د شعرونو ټولګه) پېښور، پښتونخوا. ۱۹۹۹ع

۴. د هوښیارتیا تله: (ساپوهنه) پېښور پښتونخوا. ۲۰۰۰ع

۵. ژبساپوهنه: (همدا کتاب)

۶. د هوښیارتیا کلتوري بې پلوه تله: (له چاپ لاندې)

۷. د پیدا ښتي ښو د هوښیارتیا تله (له چاپ لاندې)

د هوښیارتیا کلتوري بې پلوه تله او د پېدا ښتي ښو د هوښیارتیا تله د پښتو ژبې سر بېره په انګلیسي او الماني ژبو هم ژباړل شوې ده. تر څو چې په دې توګه د یوې خوا دا تلې چې په ساپوهنه کې نوي دي د نړیوالو په خدمت کې راوستلی شي او له بلې خوا پښتو ژبه هم د نړۍ والو ژبو په ډله کې ودرول شي.





کبیر ستوری د ساینس پوهنو ډکتور (Dr. rer. Nat.) دپلوم ساپوه (Diplom Psychology) په هند پښتون په تېر میر داد خیل چې د پښتنو د یوسفزو د پرګنې پورې اړه لري. ستوری د لعل محمد خان زوی او د برې پښتونخوا د کونړ د تنر په کلي کې په ۱۳۲۱/۱/۱۷ هـ ل کال (06.04.1942ع) زیږیدلی دی.

ده خپله لومړنۍ زده کړه د خاص کونړ په لومړني ښوونځي او په کابل کې د رحمان بابا په لیسه کې او خپله لوړه زده کړه د جرمني د فرانکفورت، کولن او د ماربوګ په پوهنتونونو کې د ساپوهنې (Psychology) په څانګه کې چې فلسفه (Philosophy) سیاسي پوهنه (Pol. Science) او ټولنپوهنه (Socialogy) ورسره مل وه سرته رسولې ده.

ستوری د نړۍ د ساپوهانو په ډله کې ولاړ دی او د ۱۹۷۵ع کال راهیسې د کړنې د ساپوهنې د نړیوالې ټولنې (International Association of Applied Psychology) غړی دی. ستوری د پښتون سوشل ډیموکراتیک پارټۍ (PSDP) مشر او د دې پارټۍ د بنسټ ایښودونکو مخکښانو څخه دی.

او د شاعرۍ په نړۍ کې تر ټولو زیات د پښتو د ادب د پلار اجمل خټک نه یې الهام اخیستلی دی. د پښتنو د یووالي، خپلواکۍ او سوکالۍ دپاره ده ته د باچا خان نظریو ژوند وربښلی دی.